# د خیبر وږمې

یا

## د حمزه څلوریزې

پښتو ټولنه

۱۳۴۷

د پښتو ټولنې د خپرونو پرله پسې لمبر: (۱۸۸)

# د خيبر وږمې

یا




## د حمزه څلوریزې

پښتو ټولنه

د چاپ شمیر: (۱۰۰۰)

د ثور میاشت ۱۳۴۷ ش

# انتساب

د اعلیحضرت غازی محمد نادرشاه
شهید په نوم چه پــه افغا نستان
کښې يې د پښتو بنسټ ایښی دی.
حمزه شینواری



اعلیحضرت محمد نـا در شاه‌شهید چه دا کتاب
د دوی درانه نامه‌ته منسوب شوی دی

# یو څو خبرې

دغه کتاب چه اوس د پښتو ادب مینانو ته وړاندې کیږی ؛ د امیر حمزه شینواری د فکر او دماغ یوه روښانه ډیوه او د ده د سپیڅلی ضمیر ځلاندې پلوشې دی. حمزه تر اوسه پورې د غزل د استاد په نامه پېژندل شوی دی ، مګر د ده د څلوریزو او پاړکو دغه مجموعه د ده په دې برخه کښې هم د استادۍ حق ورکوی .

دغه څلوریزی او پاړکی په بله ژبه د خیبر ورمې ، هغه ورمې دی چه هر اوی زړونه پرې تازه کیږی او مخ پتې غوټۍ ور بازدې غوړیږی لکه څنګه چه د څلوریزو قانون دی په دې مجموعه کښې هم هر راز څلوریزی راغلی دی چه هره یوه یې له بلې نه د لنډیو په شان په مطلب او معنی کښې توپیر لری

موږ د حمزه په څلوریزو او پاړکو کښې یو څه کمی زیاتی د دې د پاره کړی دی چه دو خت او چاپېر له هوا سره سمون وخوری . پښتو ټولنه په ډېره خوشحالی دغه ادبی سوغات یاد خیبر ورمې د پښتنی دنیا په درنه ځولۍ کښې وراچوی او په دې وسیله د خیبر ورمې د هند و کش او سپین غر له ورمو سره اشنا کوی او یو بل ته یې غاړه غړی

ورولی . دپښتو انو او هسې استادانو دوینا خپرونه د پښتو ټولنې په ادبي وظیفو کښې یوه ستره وظیفه ګڼل کیږي هغه دا خپله وظیفه بولو چه د خیبر وږمې د پښتو نخوا ګوټ ګوټ ته ورسوو او د ادب تږي ور باندې خړوب کړو .

موږ په دې کتاب او د حمزه په شعر او ادب نوره څېړنه بې ضرورته بولو او دغه دوه بیته د ده د ژړه د ترجمانۍ د پاره کافي ګڼو :

حسن ته خودبین یې زه پښتون یمه

ما نه ده ښودلې ګډ استر ګو تــه

عشقه ددې او ښکوله تسپو دې څار

خندکه دې ورزده کړه ثناستر ګو ته

«رشتین»



بسم الله الرحمن الرحیم

ای درده زړه سوخته شو، ځیګر ته رسه
سودا شه، جنون شه او سر ته رسه
حمزه شه، جوهر د ګل حکمت نه وځه
مرهم شه د ځان او پرهر ته رسه



عاشق چه شنه خالونه د دلبرانو وینی
پسرلی که وی، خو ګل د پیغمبرنه وینی
بې یاره که قاصد راغی حمزه، نو څه پرې
اختر کښې خلق نه ګوری اختر نه وینی



تارک، ګوښه نشین، غم د ژوندون کړې ولې
کېدونکی حقیقت، له دنیا ستون کړې ولې
دنیا د زیوره که ناوې او ته یې ځلمی
ناشکره داسې ته د نعمت خون کړې ولې



حمزه تا عبادت په څه بهانه پرې ایښې
جنت دې په بدل د میخانه پرې ایښې
بابا زمونږ پرې ایښې په یوه دانه ؤ
څه کفر دی که ما په پیمانه پرې ایښې

خوراك چه مكلف كوي ، نوكري خو بونه
تكليف د شپ خېزي وږي په فاقه مړ ونه
حمزه كه د جوارو ډوډۍ خوري ښه وشو
څوزان يې وي خوراك، چه وږي درانه بارونه



بې شمعې رسېدل نه دي منزل ته اسان
پرې باسي د كمره نه سړي وهم و ګومان
كوښښ د ترقۍ چه كړې بې علمه حمزه
معلومه شوه د شپې په غشو و لې مچان



منم چه غيرتي يې په حجره يې ښه ځوان
ملك يې ، لرې پولې ټۍ هم نوكران
حاتم د زمانې يې، خوداو ايى حمزه
سر ښكته په ګرېوان كښې كړه چه يې مسلمان ؟



زه هغه ابتدا يم چه دنبال نه لرم
يم داسې زمانه چه مياشت و كال نه لرم
حمزه چه د كمال مې څه پروا و نه كړه
اوس به زه تل تر تله يم زوال نه لرم



دنيـا كښې هغه كس به سلامت پاتې شي
چه ژوندي وي ساده كم يې حاجت پاتې شي
حمزه چه دغمو بوټي بې ښاخه وي
پنجو نه د مارغانو امانت پـاتې شي

بې ځایه چه خرڅ نه کړی ، عدالت دغه دی
عامل په کفایت شه مشقت د غه دی
حمزه که ته لکی شې دولتمن به نه شې
چه کم دې ضرورت کړې ، نو دولت دغه دی



زاهِه خیالات بدل ، نوی کړه ځان کښې پیدا
تفسیر د «موتوا قبل ان تموتوا» شو دا
په ځمکه کښې حمزه چه دا نه نه شې ور سته
شین بوټی به زرکاله کښې ترې نه شی نما



حسرت زما ، پرو مبی هغه منظر اتوی
صورت د تپرو ورځو ، دا نظر لتوی
حمزه خولا مو پرنه دی ، د خنجر په او بو
دردونه یې ماهِه شو ، بل پر هر لتوی



بوت نه ؤ ، نو ودانه مې کعبه کړه ځکه
چه مې نه وو ، نوما مراقبه کړه ځکه
اوس جام چه دوصال شو ، د حمزه په نصیب
زاهده د تو بې نه مې تو به کړه ځکه



دردونه چه غذا نه کړی پر هر دې څه دی
مېلمه چه پرې بلا نه وی ، نو سر دې څه دی
حمزه چه انتظاریې اجابت نه کوی
ته څه یې؟ اسویلی دې څه؟ اثر دې څه دی؟

له خو فه دې له کاره انسان پا تې نه شي
په کار کښې د فطرت دې حیران پا تې نه شي
بې وهمه څه د وېرې حقیقت دی حمزه !
دا شرط، چه اراده کښې نقصان پا تې نه شي



حمزه به څه پوښتې چه ، د څه یار یې وموند
هجران ؤ که د شپې ورځې انکار یې وموند
د شپې ورځې غمونه په خندا شول بدل
چه زړه دغې وچاودو، قرار یې وموند



کم سن دی څه غرور به شي دلبر نه جدا
جوهر نه وی، د نوی جوړ خنجر نه جدا
حمزه صبر کړه بار به خپل جمال شي په یار
میوه چه شي پخه، شي د شجر نه جدا



حمزه چا لره غم چا لره نم ورکوې
عالم کښې چا ته زیات وچا ته کم ورکوې
د خپل راحت د پاره، داستم به نه دی
دا زهر دی چه زخم ته مرهم ورکوې



چه تندر اواز وکړی، نو برېښنا وی پکښې
جانان په ما منت چه کړی، خنداوی پکښې
راځی سېلۍ په مخکښې له باراڼه حمزه!
ساړه چه اسویلی وکړم، ژړا وی پکښې

دعشق اورمې له ستر ګو، ګړل روان رودونه
ګرمې دېشه کال ،وروی بارا نونه
پیا له چه دوصال غواړې له یاره حمزه!
له زانې کټوری غواړې په کوم عقلونه



سرسبز مې په نسیم شول دسبا ګلونه
نفس دې ډك دما لګې ګړل تازه زخمونه
تر کومه منتظر به دې حمزه وی اشنا!
ساته په نمکدان کښې دمینو زړونه



روژه ده چه پرې جل در یاضت ماتوې
بیا زور په دغه جل دضلا لت ماتوې
عادت د نفس قوت دی او قوت یې بدی
عادت به په نیکۍ شې چه عادت ماتوې



په وخت کښې دوصال، ستر ګوته نم راځی
چه څوانه خوشحالی شی، هله غم راځی
وحشت مې زبان بند کړی، چه حال وایم حمزه!
پرهر چه په خندا شی ،نو مرهم راځی



خواهش نه شه خالی، ستا به دلبر شی هله
خسوف چه شی ترې لرې، رونی قمر شی هله
حمزه! شمع زینت شی، په سر اوربلوی
ګوګل در باب، تش په نغمو سر شی هله

عاشق د بل په خوله جواب بهتر نه گڼی
اوبو کښې چه وی عکس هغه قمر نه گڼی
حمزه ! دیاردتشې خولې خنداڅه په کار ؟
باران چېرې څوك پرخه دسحر نه گڼی



چه عشق وی اوژړا نه وی، څه شان وی پکښې
دریاب هغه ته وایه، چه توفان وی پکښې
حمزه! دشر یفانو خلقو کار دی ژړا
درنه چه وی وریځ هله باران وی پکښې



چه پرانستهٔ گل خوله، نو په منقار شوڅکه
مارغه چه آواز دکړلو ، نو ښکار شوڅکه
خوله پټه بهتره ده ، فرید وایی حمزه!
گو یانه چه منصورشو، نو په دار شوڅکه



خواهش په ریاضت شی، فنا یا که سوا ؟
ا تش کړی په و هلو د بکر کښې ر ڼا
خواهش چه شی غایب ، نو پیدا کیږی دوبار
چه پرې دویوې سر شی، نو بل سر کړی نما



ناپوهه دی احساس چه دښه ذات نه لری
یوعلم داد ب ځان کښې صفات نه لری
حمزه ! سزا جزاده، دد رنو په بـرخه
سپك څیزته مقناطیس هم التفات نه لری

ای عشقه پوهه نه شوم ، بې بقا کـه فنا
بورنغ بې حقیقت کښې ، کـه قضا او دوا
پسرلی دې لهیوې ستړګې ،خزان له بلې
خندا بې دو صلت ،کـه دفر قـت بې ژړا

✲ ✲ ✲

اآش دشمعې، شوق دپتنګک نه بدلـوی
دزرو اصلیت ، چېرې زنګک نه بـد لوی
حمزه! دغیر تهذیب څه کوې ،ماروګوره
بدل کړی زوړ پوستکی ،خور نګک نه بدلوی

✲ ✲ ✲

تل تل چه پرې نشتروی،هغه رګک یمهزه
په سرچه داوبو وی هغه څـګک یمـه زه
حمزه !چه د اشنا نغمې را ځی ور لره
بل هرڅه ته چه کوڼ وی هغه غوږیمهزه

✲ ✲ ✲

ځان مه نغاړه زمانه ،کروړه خو نـه یم
تیندك به په ماونه خورې موړهخونه یم
ترڅو دغم په تہلو کښې به سوځی حمزه !
انسان یمه ظـالمه ،پیکو ړه خو نـه یم

✲ ✲ ✲

خوشحال یم تورې زلفې دلر با مې ومو ند
ښایسته لـکه قمر دی ، خو بلا مې و مو ند
حمزه! چـه بد قسمته لـه ازل ومـه ز ه
دنیا لره چه راغلم بې نوا (۱) مې ومو ند

---

(۱) زما دپیر لقب ۰

حمزه! داسې بې کاره خر شي لټ شوې ولې
رخصت دې شو قرار داسمان کټ شوې ولې
دسر ولبو په غم کښې وې تږلې غوندې ته
دپاك الله دوېر ې داسې غټ شوې ولې



اشنا به شي دښمن هم که دسر لرې څوك
دنیا کښې چه اخلاق ښکلې بهتر لرې څوك
هر څو که مار دښمن دی، دسړو حمزه!
امېل يې کړې يو دم کښې، چه منتر لرې څوك



حمزه! څه شي په دا که مال و زر لرې څوك
مالك دتخت و تاج وی او لښکر لرې څوك
په ستر ګو کښې جوهر چه دحیا نه لرې
تر ې ښته په دنیا کښې که کو ثر لرې څوك



پسرلې شولو، مرغان دې بهر ته درومې
رندان دمیخانې دخوا، چمن ته درومې
خواهش دامانت، دکوټې و رپر انست
تو بې کوی شکر و نه، خپل وطن ته درومې



تل شپه ده دخوارې په تا سحر را نه غی
اختر دې بد په فال چېرې اختر را نه غی
وریځ چه باران راوړی، نو بر ښندا وی پکښې
افلاس دې ژړوی، پکښې اثر را نه غی

اول د شریفانو و جوهر، علمو نه
جرأت او شجاعت دینی، ملی جوشو نه
او س داد شرافت دی، معیار شوی حمزه !
چه پېغلو سره کا ندی، په هنر رقصو نه



حمزه! بس کړه نور مکړه دفېشن غمونه
بې خونده شی چه تېرشی دهرخېز وار ونه
وېښتان یې فېشنی، سپوردګندګی پهګاڼې
په پښو کښې دچوړی وی کرمچی بوټونه



ای شیخه ! داسې غیر مهذب شوې ولې
عالم یې، نو بېرلکه دد زب شوې ولې
شیخ وې، په خنداهسې مسټر ته حمزه !
انسان یې، نولغړ لکه دکب شوې ولې



ناصحه ! نوردې نه اوری حمزه پندونه
په ډ اګه غوږ وې، دا بې بها لعلونه
بې ځایه ولې ما منع کوې له ژړا
تر څو به ا با سیند ته ورکوې بندونه



زاهد شول تورې زلفې کچه شنه خالونه
رنجو پـه دندا سه د بنځو زینتونـه
داوخت دی د تهذیب دا یې سینګاردی حمزه!
پنډۍ بربنډې، غوځ وېښته، بربنډ مټونه

تهذیب وهی تندی ، ګلومې په شور و لیدو
حمزه ! د دنیا هر کار مې نسکور و لیدو
داخوك دی چه زینت کړی ددوزخ په جنت
ګلاب مې د تتڼۍ د پاسه خپور و لید و



تهذیب نوره دنیا پاس په اسمان کښېنوی
صورت یې کوم، په عقل کښې افغان کښېنوی
دربر کړی کوټ پتلون په چو نه سپین بوټونه
حمزه ! په ځای د بږ یتو دوه مچان کښېنوی



پسرلی ستوما نی ووېستهٔ زیړ ګلی را نه غی
زړهٔ چاود دغوټۍ خواسو پلی را نه غی
ګر ېوان به زه هم وشلو م د ګل غو ندې
و ر شو ته که د زړه مې پسرلی را نه غی



اشنا که ستا د ید ن مې پـه قسمت نشته
درواېې خله ، دې ستر ګو ته حاجت نشته
ظلمت دی بې له دې هم، په ظلمت کښې به یم
ا مید چه در ځـا نـه و ی ، ظلمت نشته



غم غم شوم خو د غم سره ا شنا نه شو مه
ځوځو ځله ور ګلی شوم ، خودر یا نه شومه
بلبل غو ندې و ژړم په بهار او خزان
پر یشان شوم لکه ګل ، خو بې نوا نه شو مه

اشنا! ته په خندا او سه ګریان نه یمه
تازه لکه د ګل او سه پرېشان نه یمه
اباده میخانه ستاد څوانۍ دې و ی تل
محفل کښې دې د جام غوندې ګردان نه یمه



حیران پاتې یم زه یمه تمشال د چا
مرات چه دهستۍ مې و ایی حال د چا
چو هرد و جود که خبر لوڅ کړم زه
هر قال مې نه و نغو یږه چه دی قال د چا



سرې سترګې تل په شو نهور پندی ګرزم
پرېشان یم که په ور و که ګړ زندی ګرزم
قایم دی زماژوند په پردی ساه با ندې
ګرم نه یم، خو یم ګرم چه زه ژوندی ګرزم



سلګۍ د غلامانو د افشا څه په کار
طوفان چه را پیدا نه کړی، اخفا څه په کار
د انجل تر پېغلتو به په نظر کښې نه ده
خپل کور چه په کار نه شي، په بېدیا څه په کار



هر څو که وې په بند کښې حو صلې ما تې
پسرلی د خزانو نو کړې، حملې ما تې
خپل بڼ ته رسېدل چه په خبرو نه شول
تو تیانو په و ز ر و کړې پنجرې ما تې

هیڅ پوی نه شوم پــه دې چه ستا نظر څه ووې
بیاز ړه مې له دې کیفه بې خبر څه و وې
زړه چاودی کلی ګل شوې په خندا سر شوې
هیڅ حال نه وایې ما ته چه سحر څه ووې



ساده ساده کــاته ، دغــر څنو زده کړه
بیا ستر ګی جو ړول دشنو زمرو زده کړه
چه ستر ګې ټیټې نه کړې ، د هیچا په کتو
هیچا ته ټیټه مه وایه پښتو زده کړه



اقــرار چــه پــه مسکاوی تسلی واخــلی
بیا هم نو تصورمې - ټولې شپې وا خلی
مانښام ته دې زمــکه چیرې ړاړور نه کړ
بیخی د انتظار نه به ، ډیوې وا خلی



دنــیا څــه عجیبه ده دحکمت کــوردی
هر څیز یې آینه ده د حیرت کو ر دی
اشیاء په یو او بل کښې دی ، خو جنګک نه کوی
نسیم کښې در ښا - هم دنګهت کو ر دی



په تا مې چه نظر وی نو بس ټول «ته» یمه
خپل ځان ته چه راستون شم نو همه «زه» یمه
قصې د «زه» او «ته» خوز ما خوښې نه دی
ما پوی کړه اشنا ته څه یې - او زه څه یمه

تیاره کښې د کثرت چه چېر ته ګیره نه شي
وحدت نه دښکلا چه مخکښې تېره نه شي
وعدې، دهغه یار سره چه کړې وې ما
خاطر دهغه یار چه را نه هېره نه شي



ماحول چه نن بدل شو، دی خیالونه بدل
دې نوی حال مې کړل زاړه حالونه بدل
څه کیف دی تېرې ورځې را یادېږی را ته
ماضی نه فنا کېږی، شی کالونه بدل
سوات -۱۳ -٤-٦۳

صورت مې منعکس شو، په وجدان دژړا
مېړی مې دپښې لاندې ګرفتار په فنا
فریاد مې چه ددې په ګوش وهوش وا ورېد
وې شکر چه مې مل شوه، په لټون کښې قضا



سر سبزه مې هستی وه په الفت د آشنا
اګاه نه ومه زه د بېلتانه له جفا
واعظه طعنه مه کړه کښې بې صبره یمه
لرګی چه شین په اور سوځی، نوکا ندی ژړا



کم ظرفه وی حاسد په چا اثر نه لری
محروم چه له بصره وی نظر نه لری
د ګټو نه را وځی زر بها چه لری
لېز تاؤ سره چه اور و اخلی جوهر نه لری

عاشق شی معشوقه او چه معشوق شی عاشق
چه یو وی نو تر منځ یې د نسبت وی خندق
د ما لکې کان کېنې ، ګټه هم شی ما لکه حمزه !
ناقص چه شی ملګری ، د کامل نو شی حق



عاشق خویم ددې نه زه انکار نه کوم
اشنا که رضا کېږی نو تلوار نه کوم
که نه کړی التفات نو زه هم یمه غیور
چه دی نه کوی زه هم هغه کار نه کوم



له یو طرفه عشق نه وی ، دا مه کړه ګومان
دا اوردی چه شی بل په التفات د جانان
کوم څیز چه څلا نه لری په څپله حمزه !
هر ګز په پلو شو به د لمر نه شی روښان



مارغه ته مارغه مه وایه دېر نه جدا
دماغ به څه دماغ وی د هنر نه جدا
مذهب او سیاست ګڼه لازم ملزوم
میوه نه وی هیڅ ری د شجر نه جدا



پښتو نه د اسلام په مینه ګرم او سه
عفت لره مدام ، لرې له شرم او سه
چه تاردې دژ و ندون شلوی دښمن کړه ټپی
دا او ره دور پښمو غو ندې نرم او سه

پر کار هم چه کار ختم کړی وز ګار شی لږ
سختۍ نه پـه فراغ کله بېما ر شی لـږ
وحشت دی که سوداده چه زیاتېږی هر دم
باور مې نه د ی کنم به دا انکار شی لږ



هېڅ پوه نه شوم چه څه دی (خو) شوا خون لر مه
ژ وندون لکه هوسۍ په مېږ توون لر مه
یم قیس په بې خودۍ کښې، په خودۍ کښې لیلی
مضطر لکه پر کا ریم ا و سکو ن لر مه



ساکن په دواړو ستر ګو کښې طوفان لر مه
ارمان دو ړېدو چه کړی با ر ان لر مه
و ر یځ د ا سو پلو ز ما بهر نه ر ا ځی
ماڅه کړې ، عنا صر ډك دار مان لر مه



لبا س کښې د مغرب چه جینکۍ و ینمه
دا وایم ګلستان کښې لولـکۍ و ینـمه
دهېڅ سره بوټان دلوړو پو ندو په پښو
حیر ان شم چه په غوږ کښې یې څمکۍ و ینمه



مر هم شته، خولا زخم مې جوړ شوی نه دی
هر څو که شته او به تاومې سوړ شوی نه دی
یو ځل په کال وسر کښې مې که یاد کړ ی نو څه
په ځاځکی او بوځوك چېر ې موړ شوی نه دی

حاجت چه ور ته نه وی ، اختیار دغه دی
محتاج د کیف چه نه وی، نوخمار دغه دی
حمزه! د بل په طمع، چه یو کار و نه کړې
په ځان اعتبار و کړه ، اعتبار دغه دی



ځه، درومه ، زه خوستانه یم غلام تو بې !
کرم کوه بهر مې شه له جام تو بې !
پسرلی ، ښکلې وریځې او ځوانی ده زما
کړه زړه د بوډاګانو خپل مقام تو بې !



په خوله مې توبه نه راځی، توبه خدایه
چه نه راځی داخه راځی ، توبه خدایه
توبه په پسرلی کښې ، د حمزه نه شی
توبه له توبې نه راځي ، توبه خدایه



پسرلی دګلو وخت او شراب او توبه
ساقی او ترانې در باب او توبه
واعظ جوړه دځوانی بهار لیدلی نه دی
مشغله محبوبه او شباب او توبه



ګل ستر ګه کښې نن پرخه د سحر نه لری
مرغان داسی په پردی چه بستر نه لری
یار به! دا آثار د پسر لی خو نه دی
دخښلو د تو بې پروا ځیګر نه لری

اثار دتو بې وا یی مې نوشی نښه نــه ده
نا پوهه په څوانۍ کښې بنګک نوشی نښه نه ده
حمزه وایی همز ولی دی څوانی او مستی
ددې دواړو په څه هم اغوشی نښه نه ده



وصلت بې خو ده کړی بیا جنون را غی
تېر غم دامام (۱) بیا لــکه پرون ر اغی
ترې پاتې ارمانو نه دشهید وو حمزه !
مرګی پــه ننو اتې دژ و نــد ون راغــی



نا ینه ګرځی خپلــه مد عــا لټو ی
عر وس دشها دت لره حنــا لټو ی
زلمی داجا بت غواړی ،سینګار دعصمت
حنا تــه دمعصو م وینه قــضا لټو ی



داشپې لمدې لمدې دی او مــد هو شه فضــا
په میو د شمیم باند ې بې هو شــه فضا
پسرلی تنۍ پرانستی دی،ولاړ دی حمزه
خو بو نه دجنت وینی ګل پــو شه فــضا



جمال چه دچا وینم ،نو هم ستا وینمه
کا ته که چا ته نه کړمه ،هم تــا و ینمه
تیاره ده که رڼا او که ګنــا ه، نیکی
هم ته او ستا صفت ،سبــا، بیګا و ینمه

(۱) مطلب اما م حسین (رض) دی ٠

پوسیدلی پمه دعشق ، خوشور و شر نه لرم
دلبر لرم په کور کښې ، خومحشر نه لرم
واعظه داګومان که تصور دی زما
چه ځان و ته نظر کړم ، په تن سر نه لرم



ګرپوان باندې مې بې سببه نم دځه دی؟
دې چولی بیابان باندې ، شبنم دځه دی؟
نه وجه دژړا او نه سبب شته دغم
زړګیه ! را ته وښیه داغم دځه دی ؟



چه زه ځه ورته وایم ، هغه نه کا اوځی
په ماد رقیبانو زړونه ښه کا او ځی
رو یو نه چه دخدای کړم ور ته مخکښې حمزه !
دبادپه خوله پودوه خبرې وکا اوځی



رټلی چه هر چا پمه ، بستر ور کوم
هر څوك چه راته بدوایی نوزر ور کوم
یم هغه ونه څوك مې چه په ګټو ولی
خپل سیوری ورته زه اوهم ثمر ور کوم



پوځل چه لاړشی بیا هغه هوس نه راځی
چه ووځی ، نو بیا هغه نفس نه راځی
خفګان مې مدامی نه دی ، راځی اودرومی
او به لکه په څوړشی اوواپس نه راځی

الفت داسې شی نه دی، چه پرې خوک شی رسوا
دا زړه دې ورته راچه شی نو کاندی ژړا
اوبو کښې خو اواز او نه ښکالو شته حمزه!
تېرېږی چه په ګټو، نو پیدا کړی صدا



مشام لره دستا به لګه عود شمه زه
فانی چه شم په تا، نو به موجود شمه زه
لالیه! په ماګرانه له نظره مه شې
په شان د سپېلنی به درته دود شمه زه



سواد د تورو زلفو دې سودا راولی
انداز دې کتی نه شم خوږ ژړا راولی
سرخم دې توروسترګوته اجل وینمه
بلا لرې داسې چه قضا راولی



ځوانی چه راشی ځان سره ادا راولی
صهبا نشه د ځان سره همراولی
شنواریه! چه یار راشی نو شی کور دې ودان
پسرلی بوټی ګلونه په صحرا راولی



چه نه چښمه زه چای، نو پیالی څه پکار
دریاب کښې چه سفر نه وی، جالې څه پکار
انسان لره یوقوت، دویم جونګړه ده بس
نوکر، خدمتګاران، لوړې بنګلې څه پکار

الفت هغه ګڼه چه مل له سوزه وی ساز
باغ څه دی چه ګل وی د بلبل نه وی اواز
حمزه! چه اشنا لرې کړ بېلتون درڅخه
اوس مخ ته دمثال یې کړه سرخم دنیا ز



یو څیز په حقیقت کښې دی عذاب او ثواب
خو اهش چه نه وی یو وګڼه لطف وعتاب
رحمت دی ،خو واعظه درته څه به و ایم
بارش چه اپوته کړې، نو ترې جوړه شی شراب



نېکی کړه چه زوال دې نه راځی په شباب
خو اړه به وی عسل که څوک یی وخوری په خواب
نېکان چه شی فنا بیا شی پیدا حمزه !
باران چه و کړی ورک شی خو بیا راشی سحاب



نا اهله به لوی نه شی په لقب او خطاب
سرخاب نه وی ټپوس که لری پر دسرخواب
بې علمه یو کالبوت ګڼه چه روح نه لری
بې ملکه ریا سته څه بادشاه او نواب



ظالم که وی غره په خپل قوت با ندې
مظلوم د خدای په فضل او په رحمت باندې
لیدلی فرعونان ډیر دمستۍ سترګو دی
چه راشی په صولت ،ځی په حسرت باندې

ړومبی دېدن شراب وی بې هوشی راولی
ړومبۍ بوسه د لبو مد هوشی راولی
ړومبۍ کېه چه وړی دړوړه واخلی
د نفس په شورو شر کښې خاموشی راولی



د «سرې شنې» په ایندو کښې جلوه گر یمه زه
سرخی یم که باران د خپل بصر یمه زه
فانی چه د فراق یم، د وصال د ه بقا
ظلمت د ېا ره غشی د سحر یمه زه



خرد وایی چه پور ته شه عمل دی پکار
ایقان وایی سکون کښې خه خلل دی پکار
خرد وایی سکون په انتشار کښې وی پټ
ایقان وایی چه بس خو تور ور بل دی پکار



په سیند کښې د هستۍ لکه د شور یمه زه
د موج په زړه کښې پټ چه څو مره خپور یمه زه
وم څاڅکی، خو عالم ؤ د نیسان را کښې پټ
ور کېږم، ادا نه شوم هغه پور یمه زه



زه چا یمه ویلی، هغه چا ویلی
زه هغه یم ویلی، هغه ما و یلی
دنیا که افسانه وی، چه پاک رب ویلې
پاک رب یو حقیقت دی چه دنیا ویلی

انګریز د مات قوت مارغه ته پر جو ړوی
جهاز درعب یې مات ، ور له وزر جوړوی
جرمن مشت و ګریوان ایله د روس سره دی
مور چې دی له پښتوانه په خیبر جوړوی
۳ د مارچ ۱۹٤۱ ع

✲ ✲ ✲

خال نه بړدی د سینګار سامان یې کور پاتې شو
حمزه را ځه زړور د تهمت تور پـا تې شو
دا ښه شوه له څړیه یې غـلاف لری نـه کـړ
بې ډا ره شه په سوړه کښې منګور پاتې شو

✲ ✲ ✲

یو رنګی چه کوم رنګ وی په ښه رنګ لیده شی
سینګار په اینه دحسن زنـګ لیـد ه شی
تعریف چه دبدرنګی دښا یست کوی څوك
لایو په دوه له مخکښی نه بدرنګ لیده شی

✲ ✲ ✲

شکرې په سرو لبو دلر بـا وا یـی
زن نه کوی حیا ، صفا صفا وا یـی
انکار کړی دیاریه نه په ښیوو نخرو
اکثر خلك په ټوکو کښې رښتیا وایی

✲ ✲ ✲

بینا ستر ګو زمـاؤ یو بشر لید لـی
هغه یې هم ډیر نه ، خو یو نظر کتلی
چه ستر ګې زما خپل ورې نظر و خوړې
که ستر ګو ور پسې زما نظر خوړلی

کړی ناز خو په تکل دحجاب شوی نه دی
چړې خو تیروی ، خو قصاب شوی نه دی
ښا یست کښې یې کمی لاد ځوانۍ وینمه
دولت لری ، صاحب د نصاب شو ی نه دی



زه هغه شاعر نـه یم چه دروغ وا یـی
دروغ هم بیا هغه چه بې فروغ وایـی
حمزه دی اینې غوندې بې روی اوریا
دانـه چـه د چـا پیو ته به دوغ وا یـی



خلوت ته یې لار نه مونده بهرا ووده شو
ظلمات کښې شوستومان دیار په دراووده شو
قـانع شو جوړ خضر دحیا ت پـه چینه
لېمو کښې دا شنا زما نـظر او د ه شـو






زاهد کړه ګیلوه ړکه په بستر اووده شو
سپی وړی او نهر دچاپـه در ا ووده شو
راویښ شو یو بې غمه چـه سحر را غـی
بل ټوله شپه په غم کښې ؤ سحر او ده شو



داخلق زړه چاودون ته موسپدل وا یی
برهمې پر ښا نۍ تـه خند یـدل وا یی
روداد دمیـن زړه زما دګـل هسی دی
حـا لت تـه دوښا یې غوړ یـدل وا یـی

مضراب مې د بنو دزړه په تار مه وهه
دا ساز خاموشه شوی په بار بار مه وهه
ای بنګلیه! خپله يې دې چه بې لارې نه شي
دلاری در ته وایم چه دالا رمه وهه



مستی د پسر لی په زړه نوکارې وهی
له ستر ګو مې خمار دمیو د ارې وهی
اسمان کښې دلپمو دی زما ټال دبو ډیه
فطرت بې خو ده شوی دزړه لارې وهی



ور پڅو دچغ ګرمې نغارې وکړی
بر قونو دتېغو نو شرارې و کړې
فطرت ووې دزړه داغونه ورم چیر ته
پسرلی ؤ چه د نیاته يې اشارې وکړې



اوس پاهې مې دزړه نه د توبې کړه لرې
کیفونو ته ، مستۍ ته دروازې کړه لرې
ساقی پر یشانه زلفې جام په لاس راشه
د د هر منتشر ې افسانې کړه لرې



په زړه يوا سويلي ددې ملت راولې
دا ابر ، زما خدايه درحمت راولې
مسکې لکه بر يښنا په ځان ځانې کړې مونږه
باران له ژوندون دجمعیت راولې

شك نشته هيڅ په دې کښې مسلمان يمه زه
دلواړه ګې باشنده يمه ښه ځوان يمه زه
هرګز به فنا نـه کړ مه قامی امتـياز
ژوندون مې هم په دې دی چه افغان يمه زه



مشرب زمو نږه يو دين وا يما ن يو دی
که ږه دی که کوز همه افغان يـو دی
کړ ومشت او ګر پوان مو نږه اقتدار د پر نګ
هيڅ نشته اختلاف پکښې هر شان يو دی



پښتون له سره تېر دی قـر بانی پيژ نـی
زمری غوندې په سيند کښې روانی پيژنی
ړومبی دا تحاد نعره پښتون کـړ ې ده
دنيا جمال الـد ين افغـا نی پـيژ نـی



پښتون دځان سره عالی نعمت را وړی
ساده يې آينې غوند ې فـطرت راوړی
جو هريې دی دقا م دپاره سر ور کـول
قربـا ن چه يې غيرت او جميت را وړی



عا لم کښې دا سلا م بـه اتحاد شی پيد ا
شيرين چه داسلا فو هغه ياد شی پـيدا
پښتون تېشه په لاس کښې دی تيار و لاړ
دامه وايه چه دريغه که فرهادشی پيدا

يو څو قدمه ګوره دهر چا سره ځم
اشنا سره اوهم دنـا اشنا سره ځم
نا پوه نه يم خو کله ناپوهه شمه
لاچاره په دنيا کښې ددنيا سره ځم



زه لاړم تنهايي ته ،خو تنها نه شو مـه
ما ځان له هرڅه غوڅ کړ ،ولې ستا نه شومه
راوښيه کوم رنګ دی طلب وکړم اشنا
نيم عمر لاړ خو پوه په مدعا نه شو مه



تقديرمې دخپل ځان سره پخلا ونه مونډ
قسمت له غرپوه ړ ك مې په خنداونه مونډ
ملګر يه! خدای دې غم درځنې بېل کاندی
په دې چه غم شريك مې په دنياونه مونډ



تا نه و ينم له ځان چه تېر پېدی نه شمه
بيا ځان سره هم زه خوشحاليدی نه شمه
درواپې خله خرد ، را ته عطا کړه مينه
اوس نورخو په دې حال کښې پا ئيدی نه شمه



تا غم زما سو اکړ ، خوسوا دې نه که
تازړه زما خطا کړ ، خوخطا دې نه که
ليمه زما تېر و د ا نتظار سپين کړل
څه ښکلې شپه دې راکړه خوسبا دې نه که

پویان یم ستا دمینې دغره سر ته به ځم
همت مې نارینه دی نه چه بېر ته به ځم
بې ستانه بل د یدن په ځان حرام ګڼمه
که ستا دیدن و نه شی نو هم چېر ته به ځم



نیلی زما دشعر په جولان دی نن
جوړ خیال مې له زمینه په اسمان دی نن
رفعت ته زما ستو روکړلې ستر ګې بکې
یو ګرد زما د لار ې کهکشان دی نن



مشکل دی چه اوس سم شی دعادت کبر لیچ
کبر لیچ شو لو د ذهن ، دفطرت کبر لیچ
داڼه پر ڼه پر تهذیب ونه باو پری شول ور له
دادی د بنیادم د طبیعت کبر لیچ ! !



مسلم ته نظر و کړه ځان په ځان ګر ځی
هر یو دخپل آئین لا ندې حیران ګرځی
هر یو ځان ته و حدت او جمعیت وایی
لیکن په درې او یا ؤ کښې پر یشان ګرځی



ڼه پر ڼه پر که افقو نه وی ، شفق یو د ی
مسلم دې ر نګ په ر نګ وی ، خو سبق یو دی
حیران یم چه حق څنګه تعدد کړی قبول
داحق دی درې او یاو اړه که حق یو دی؟

نن ضبط مې لکه زړه د بې قرار و بهېد
راړوب شو، دلېمو نه انتظار و بهېد
یخنۍ په تېر ږدو تېر یدوو کړ ګوزار
هنګۍ و کړ فطرت تر ږنه بهار و بهېد



غوږ کښېږده معلومېږي چه اسمان وغورېد
اېږ و اوره چه څه وایي پسرلی و ګړېد
ډېر ډېر زړه ونه جدا لکه د څاڅکو اوسي
لېکن په دې نظام لکه باران ووریږد



قدرت د هر عمل د پاره و ار جوړه کړ
باران له څاڅکی څاڅکی یې یو تار جوړه کړ
هر څیز خپله هستی کړی په یو وخت ښکاره
او وخت یې داشیا ؤ له اظهار جوړه کړ



ستا نوم مې په خوله راغی اسویلی دې نه شي
یو عرض در ته کومه، خوز بېرګی دې نه شي
کوم شي چه زما ستر ګو کښې ستا رنګ لري
لا شي به ور ته وایم هغه شی دې نه شي



اشنا! ته خو پوهېږې چه بلبل څه وېل
بیا بېر ته په خندا کښې ور ته ګل څه وېل
لېکن په تا بهار، چه دځوانۍ راغی
حمزه ته دې جواب کښې تغافل څه وېل

دا ما ر نفس به کله په کو تــك سم شی
هر خوځ چه کړی له ځایه هغه دم خم شی
یا بین د محبت دی او یا سوړه د مرګك
بې دې نه خو حرام شه که یې خم سم شی



د غم په و ینو کښلی افسا نــه ده ز مــا
حسرت دژوند په لاس کښې پیما نه ده زما
دز ړه په پر هر و نو مې انګور ر اغی
سو ر که سو رکه بهېږی میخا نه ده ز مــا



قر بان دې شم له ستر ګو، غر ځنی دې کړ مه
اشنا په نظر مه شې سپېلنی دې کــړ مه
ستا و ا خلمه بـلا، د دې هوښیا ر و ستر ګــو
همد امې وه کمی چه لېو نی دې کړ مه



تل تــل ستم جفا کړ ه، عنایت مه کوه
هم هېڅ نظر پــه مــاد مرحمت مه کوه
پر ېږ د ې مې که مې وژ نې هر چه ته کړې ښه دی
هر څه کړ ه در له ښا یی، خو نفرت مه کوه



جذ به به ستا دمهر اود رحمت لـــړ زو م
احساس به دې دلطف او عنایت لړ ز وم
داځای دسخاوت دی په ماولاس مه نیسه
ایو ان به د ې په چغو په حسرت لړ زوم

هیڅ پوهه په دې نه شوم، چه څه، ستا په زړه دي
ځان هم نه خبروې، چه څه زما په زړه دي
سیند څه زده، چه مطلب د سمندر به څه وي
ما څه زده دي چه څه د دلربا په زړه دي



حیران یم چه بندیز د انتشار څه به وي
زړګی مې چه کړی جمع، هغه لار څه به وي
د استانه صدقه ستا د لو یې غواړم
ستا زړه چه پرې خورسند شي هغه کار څه به وي



ستا مخ کښې رنګینی مې د بهار لیدلې
د زړه د ګل قبا مې تار په تار لیدلې
د سرو او سپینو پړک یې پرېښولی نه شي
ده سترګو مې برېښنا ستا د رخسار لیدلې



لیلی د ارتقا چه ستا څړی کومه ده
سندور د کومې وینې دي، دړې کومه ده
ځنځیر چه د انسان د اخوت جوړیده
ما غبرګړ د پښتون په کښې، کړی کومه ده



فطرت راوړو دفتر، خو ګل په شور لاړو
پسرلی څه ؤ خوویې کاره اور لاړو
بې غا ښو ګل چه نه شو تلفظ کولی
مقصد لکه نګهت ترې خور ماخور لاړو

کاروان در ننگیئیو له مها ره نیسه
داجنس دپریشانیو وړه بهاره نیسه
مسکی مې لاداغونه، پخوانی دی دزړه
پهمخه دې ګلونه، خپله لاره نیسه

✿ ✿ ✿

پسرلیه! تاچه مخ داسې خندان راوړی
روداد ووایه، تاد کوم پریشان راوړی
هم ستادې مبارک وی، دازړه چاودی ګلان
مازړه دخپل زړه چاودی خوشال خان راوړی

✿ ✿ ✿

ماوې ماته بهنه کړم، داز هیره توبه
بیادا چه کړې ما، په سپینه پیره توبه
لیکن د پسرلی له مستو ستر ګو تـو به
نن ښکاری دګر ځوان مې هره څیره توبه

✿ ✿ ✿

توبه مې څکه شاته کړه، توبه خدا یه!
برېښنا دمخ یې ماته کړه، توبه خدایه!
هر څو که زه توبه توبه نارې و هـمه
توبه وایی ما، ماته کړه! توبه خدایه!

✿ ✿ ✿

حمـزه د تعلـق دا ختـتا م نښـه ده
دا ګو نجه یې وجدان ته دیودام نښه ده
اوس ګوره یې چه دومره نازېدې به په یار
تندی یې څه صفـا دا ستفها م نښه ده

نرگس وې نظر لاړ ، چه تماشا راغله
ریدی وې چه دنیا څه ده سودا راغله
مقصد خویې دا داغ ؤچه رسوایې کړلو
فطرت چه تخنو لمه خندا را غله



د غم او د ښادی له کتا رو ووتم
ستا عشق کښې دهستی له کنا رو ووتم
اوس ستا په ننداروکښې مې ژوندون خوښ دی
هر څو که له دې نورو ننداروو وتم



فطرت د رهبری که څه هنر راوړ
ما هم یې هر تکل لره نظر راوړ
لامونږ دیو او بل نه بې خبر پاتې یو
هم دې بې خبری دچا خبر راووړ



یم خاوره خو کا رونه د ګلزار کومه
کشته یم خو ښپګړه د بیمار کومه
ستا زخم د عصیان دې خبر لوڅ نه وی
مرهم غوندې ساکن اوسم خو کار کومه



دا تنګ دی که راتنګ دی ورته یون وایی
هر څو که ورته «نن» «صبا» «پرون» وایی
هوهو! چه په تنګ تنګ کښې کله خوب ورشی
معلومه شوه ، هم دې ته ٔبه سکون وایی

ښکار یږی را ته دا چه حسا بیږی به نه
عاشق که ګناه وکړی ، عذا بیږی به نه
ښکار زن چه دنیا یست وی محترم وی مدام
باز ان چه کله مړه شی کبا بیږی به نه



ګل ګل ته د مسکا راو ړی سبا پیغا م
ظلمت څپلو ستر ګو ته ر ڼا پیغا م
همد اسې د پښتو ن دا تحا د په غر ض
را وړ ی د سر حد ته بې نوا (۱) پیغا م



ارام دې د د نیا په میږ تو ن را کړ
خواهش دلوی طلب دې دمجنون را کړ
قربان دې دخند انه دا سر ارو شمعې
تاماته دپتنګ غو ند ې ژو ندون را کړ



خوشحال که دولتمند وی، خو پر یشان به وی
هر خو که جمع زړه وی، سر ګر دان به وی
ګلشن کښې یو سحر شبنمی ګل وپو ښته
په څه خوله به خا ندی، خو ګر یان به وی



د خیا ل له انقلا به وا قعات وز یږ ی
بیا پس له وا قعا تو حاد ثات وز یږی
دخیال په ښه او بد با ندې موقوف دی نظام
دا خیال دی چه ترې ګټه او بلات وز یږی

(۱) زما د مرشد لقب .

باران چه وشو للمې ګلشنې غونډې شي
چه غم ورسي حدته خوشحالي غونډې شي
زړ غوڼ زما زړګي شولو په ډېره ژړا
چه تاندشي پښه کال د پسرلي غونډې شي



اوس دایم د بېلتون له کتار و وو تم
اشنا کړم تما شا ، له تما شو و تم
نور هېڅ نه وو- شراب ووچه اشنامې ولید
واصل شوم ورپسې چه له لمبو و تم



ما پرېږده څه سلګۍ مې د هستۍ پاتې دی
یوځو ګوته نور غواړې څه مستۍ پاتې دی
ساقي د حقیقت لوړې لا ست نه کوي
لا شوق د محبت کښې څه پستۍ پاتې دی
لوادګي - ۲۵/۷/ ۵٤



اشنا پکښې تا خپل ښکلي لیمه و لید ل
هم تا پکښې کاکل ښکلي باڼه و لید ل
احساس خو آینې هم وکه، ستا دوجود
دا وایې له حیرته چه ما څه و لید ل



داڅه چه دلوړتیا او د پستۍ کیسه ده
داڅه چه د نیستۍ او د هستۍ کیسه ده
داراز مې د صهبا په پیمانه کښې و موند
دا ټول له ستا د ستر ګو د مستۍ کیسه

را پاڅه په کثرت کښې فردیت وګټه
بیا ورک شه په ملت کښې ملیت وګټه
عالم شوې؟ مبارک شه، خولا کار پاتې دی
غایت د علم دا دی چې حکمت وګټه



کوم قام کښې چه احساس د فردیت راشي
ژوندون اجتماعي شي کلیت راشي
راغونډ چه شي بخري متحد شي سره
لمر جوړ شي تړې رڼا او حرارت راشي



# توحید او رسالت

کثرت هله څرګند شوچه وحدت راغی
وحدت هله معروف شو چه کثرت راغی
راتګ دهر کمال د محمد (ص) سره ؤ
صورت کښې دانسان ؤ چه رحمت راغی



بابا د رسالت او امانت راغی
خاوند د خلافت او ولایت راغی
صاحب د هدایت او شفاعت دا دی
حامل د سړیتوب د نهایت راغی



علت د سړیتوب نه د پستۍ لاړو
نن رنګ یې د ایمو نه دمستۍ لاړو
پرتو دچا دعکس وه، هیڅ ویلی نه شم
حیرت د آینې نه د هستۍ لاړو



خپل ځان سره مونس احدیت نه شو لو
ترڅو یې چه محمد (ص) واحدیت نه شو لو
عرفان دمحمد (ص) ؤ ډېر له عقله اوچت
ترڅو ابالحسن یې چه وحدت نه شو لو

خپل عرض به په نیاز، له زړه د باندې کړمه
دانه چه به داو بنکو چینې تا زدې کړمه
کا سې چه دلېمو مې دی حضور کښې د تا
ترو ې او به نه بنا یی چه در وړ اندې کړمه



افسوس به په دې څه کړم چه بندی یمه زه
دا خپل قصور زما دی چه یاغی یمه زه
تا نفس له سر کښې چه راته ډوك را کړی
خو د ستا په مدعا عمه عاصی یمه زه



# میلاد النبی ((ص))

دا څرنګه رڼا شوه چه تیرې لاړې
لمر وختو دستور یو نه ړ پوې لاړې
اشیاؤ را څرګند حقیقتونه کړه خپل
ښکاره دچا بشر شو چه پردې لاړې



ظاهر نه ؤ تر څو چه حقیقت دانسان
پنهان ؤ لـه انسا نـه شـرا فت دا نسان
څرګند یې حقیقت کړ، دو حدت دوجود
ثابت بنی اکرم کړلو وحدت د انسان



تاوده شول، ساړه شوي وو دژوند نبضونه
مسکی لکه ګلان شو خـو نړی وختو نـه
سلګـی پـه قهقـه شـو ه د ضمیر بـد لـه
بې واکه پـه ګلړا شول صـرا حی جامونه



بیړی دضمیر ماتې شوې له جبره ووت
کوم کیف ؤ چه صدا د «انا الدهر» ووت
هر څیز دجهان، خوله لکه صدف پرانسته
څه بریښ ؤ، دنیسان له ښکلی ابره ووت

لواړګی ـ ۲۵ جون ۱۹٦٤ ـ ع

# دخوشحال خان بابا مزار ته

(۲۶ مارچ ۱۹۴۹ ع)

---

پښتونه چه ته اوسې يو تر بله خوشحال
ستا قام به په دنياوی يو په سله خوشحال
طالب که دخوشحال دمدرسې يې نو هم
خوشحال به نه شې، څو نه شې پخپله خوشحال



اوس کيف دمسرت مونږ ته انعام به شی
صهبا دوينې ضمير به راشی عام به شی
پسرلی ووې چه دامې ننه کيږه ده دزړه
غوټيږه به شی ددې نه او بيا جام به شی



ژوند دې دوام، دقبر ګل ښکاری
ملت پرې منجاور، لکه بلبل ښکاری
تخريب دارما نو نو کړی، تعمير دمراد
داراز دې د مزار دپاسه کښل ښکاری



دې جز کښې دمزار دې رنګ دګل ښکاری
رو يداد دلمرپه دې بخری کښل ښکاری
چه ژوند دپښتون قام، له دې مزار نه منی
پښتون نه دی، حمزه ته خو مغل ښکاری

پیغام دې لاغنچه کښې، بوی د ګل ښکاری
ار مـان دې لاسند رې ، د بلبل ښکا ری
وختونه دی پښتوته، برندی ستر ګی مد ام
هم ا سپې هم ګر دو نه هم مغل ښکا ری



وختو نه به ستا یاد له یا دو هېر نه کا
پید ا به بل افغا ن د تا په خیر نـه کـا
تا خښته دا سې ایښې چه فنا نـه لـر ی
تېر یږی ز ما نه ، خو تا به تېر نـه کا



# د دوهم لوی جنګ د سولې تاثیر

(جمرود - دمی ۱۲ - ۱۹۴۵ ع)

تمثال د سرې توب له لا رنګ پاتې دی
لاهم پرېې د فطرت په ښېښه زنګ پاتې دی
کړه ده په کښې امن راغی خو لاژو ندنشته
حاجت شو نورو وینو ته لا جنګ پاتې دی



شو ستون د جنګ خزان خو لا پسرلی پاتې دی
زړه ټکې دی دغو نچو خوا سو ملی پاتې دی
دنیا دخو شحا لی چمن ته تلی نه شی اوس
په ښو د عافیت کښې لا اغزی پاتې دی



اورکم شو په یورپ کښې، خو لا باد پاتې دی
خا شاک د ما دیت او استبداد پا تې دی
یو د و د دا سو بلو په مستقبل کښې و ینم
چل بل دی مر یی توب لایې فریا د پا تې دی



جنګ خلاص شو خو خاشاک د استعمار پاتې دی
اور مړ شو دخو بڅلن لاندې انګار پاتې دی
خو سا د ماد یت په باد چه اخلې انسان
د نیا لا جهنم ده هم یې نار پا تې دی

# د صابر شینواري په مرګ

ټنګی ځواني، صابر یو ړه له ځانه سره
غنچه ځی، پټې ستر ګې، دخزانه سره
نیمګړی، د نیمګړ ې د نیا باغ و ګڼه
آ ښکلی یې ضمیر د ی د ار ما نه سر ه



چــه مینه له یــارانو پخه شو ې وه ستا
که ټومنه دژوندن به پخه شوې وه ستا
وادهٔ ته هم ایسار نه شوې صا بر ه ولې
ښېوه د کومې حورې خوښه شوې وه ستا



د ا غو نه مې د تا د مینې و ړ ی ا شنا
ستا باغ د ځوا نۍ ګلو نه، سپړ ی اشنا
را ټلو نکی دی بهار، زه په زندان کښې یمه
په خو نه کښې مې د پر سوری جوړ کړ ی اشنا



# ځلمو ته سوال

یو سوال در ته کومه ای ځلمو ځلمو!
ملت د پښتنا نه کښې مېړ نـو ځـلمو
دا غېږ د مستقبل دی د حمز ه په ژ بـه
ژوندی کړئ خپل ادب خپله پښتو ځلمو

✲ ✲ ✲

چه پرې نه وزی په ښکته پښتنو ، پښتو
کړئ جگه تر ا سما نـه مېړ نـو پښتو
کړئ سور داسې تارو نه دملت د رباب
چه هره پر ده غږ کړی چه پښتو پښتو

✲ ✲ ✲

محفل کښې د پښتون چه بله شمع و ینم
هر کس له خوښۍ ډک رو ښا نه شمع و ینم
پر پښا نه پتنګا ن د ا ستعما ر د تېر ی
اعجاز به وی د چاچه یې را جمع و ینم

✲ ✲ ✲

پردۍ ژ به په خپله خوله کښې څه ښکاری
وینا د بل پـه ژ بـه خو ښه نه ښکا ر ی
په خپله خوله پردۍ ژ به د بل خبر ې
لږ فکر وکړه بدا و که به ښه ښکا ر ی

لواړګی -۸-اګست ۱۹۵۶ ع

ځلمود «حال» غوټود «استقبال» ګلونو
ژر ژر رامفصل شي ۶ دا جمال ګلونو
خپاره مودفترونه کړی ۶ دضبط او نظام
وبه مې موراخپرې کړی لکه جال ګلونو

## اباسینه‌ته

په زغل دی اباسینه د سمندر په تکل
دا ځکه چه ور کوټی‌وی دستر په تکل
ای قامه که‌ژوندغواړې په‌ملت کښې شه‌ورک
دی ستوری چه رڼا لری دلمر په تکل



هردم دې نوی‌ژوندوی دسیندونو پلاره
ماحول دې ځنګه‌مړدی دموجونو پلاره
ګرداب دې جوړ تخلیق دنویوزړونو کړ هېر
را یادکړه‌زوړ ګردان دتاریخونو پلاره



موجونه دې که ځوسره په‌جنګ‌وی مدام
لکن په‌جمعیت کښې ځنګ په‌ځنګ‌وی مدام
ستاخوی په‌پښتنوکښې پیدا نه شو ولې ؟
هر یو د بل فنا لره نهنګ وی مدام

## دافغانستان داستقلال جشن

پښتونه د سیالۍ او دنیا د ګه ورځ ده
نن ستا د ښه ملت د ابا د ګه ورځ ده
فرعون که‌ژو‌دښمن خوستاپې حق منلی
دا ستا د حریت او ازاد ګه ورځ ده

پښتو ر – ۲۷ می ۱۹۶۶ ع

# نوی تخلیق

پسرلی چه راشی خیرې ګریوانونه راوړی
وحشی او پرېشانه نګهتونه راوړی
ګوله کښې دپسرلی نوې تحفه نشته دی
چه راشی هم هغه زاړه ګلونه راوړی



دا لمردی که سپوږمۍ، نوې رڼا نه لری
بېړې نه چه وی، نور سبا بېګانه لری
دازه یم چه هردم نوی تخلیق کومه
فطرت هم هغه زوړه دی ارتقا نه لری



پسرلی کښې د ګلۍ نه زړه چاودون زده کړه
بیا چارې د شمیم نه دمجنون زده کړه
بلبل ترجمانی د ګل دزړه وکړ لـه
وې پړک له خنداو چوه اوژوندون زده کړه
لواړګی، ۳ مارچ ۱۹۶۵ ع



ګل حال دپرېشانۍ دبوی په رم وونه وې
حمزه دجمعیت په باب څه کم وونه وې
وی لمرته ستر ګې د ګل غېږ پرېږدی
رویداد دجدایۍ چېرې شبنم وونه وې

غوټۍ وې د ګرېوان دخیر ولو وخت دی
پټ راز چه دبهاردی دسپړلو وخت دی
بلبل ووې همد غـه دبدلـو وخـت د ی
نکهت ووې چه نه ، داتلو وخـت دی



که ګټه ده هغه ده چه تاوان یې نه وی
ارمان دهغه څه کړی چه ارمان یې نه وی
پسرلی به څی راځی چه دفطرت دی غلام
پسرلی دزړه پکار دی چه خزان یې نه وی



# شاعر ته

نبا ضه دوختو نو د ملت حکیمه
شاعره، ننګیا لیه د وطن ندیمه
ته ژاړې او که خاندې خو یو ژوندرا ولې
پسرلي پسې پسرلی شي د وطن په سیمه



ستا زړه دی، زړه د شمعې چه روښانه اوسی
سوزیږی او بلیږی خو خندانه اوسی
ژوندون یې خپل په داروی د ملت له غمه
په شاو خوا تیرو باندې ګریانه اوسی



راپاخه د وختو نو نه قلنګ وا خله
د فکر او د قلم توره د جنګ وا خله
نقشه کښې د وطن چه څه کمی وی در ننګ
راپاخه له حالاتو هغه رنګ وا خله



یې روح د دې وطن او تن وطن ستا دی
بیاروح د خپل وطن د پاره تن ستا دی
بېلتون خو په رباب او په نغمه کښې نه وی
یو تن، وطن او تن دی، تن وطن ستا دی

خبر یی هغه شوك دی چه سبحان نه منی ؟
بیا پسته محمد (ص) هم یې قرآن نه منی
پښتو نه دحمزه دخولې نهٔ دا واوره
دا هغه بدنصیب دی چه احسان نه منی



# دخپلې محبوبې په غم

چه وخت دې تېرېږی ،غم دې ډېرېږی
تهٔ را یادېږې ، ځان مې هېرېږی
په تا شوه تېره ، د زړه مې مني
زه تېر وم یې ، نه چه تېرېږی



وخت دماښام دروژې اذان دی
وړوجوړ کړی، لاندې توفان دی
محبوبې ګرانې تږی وفا تې
شربت دوینو مې درقربان دی



زما دزړه نه ،قرار دې یوړ
ددې چمن نه، بهار دې یوړ
ستا په شینواری، بې واره غم دی
ته شوې بې غمه، چه وار دې یوړ

پېښور ۴۲،۹،۱۵





# څلمو ته

دسیند غوندې مقصدوته پهدوا وسیږی ء
دقام دحیا ناکو ستر ګو نو او سیږ ی ء
پخپله تر بګڼی کښې چه خپل قام نه شی هېر
چې وغوندې په جنګک اوسی ء، خویو اوسیږی ء

✲ ✲ ✲

چا ته دعا کوې ، چـا ته ښېر ې کـو ی
چا لره تور ې ،چا لر ه سر ې کـو ې
شینوار یه ! واوره اسره په خد ای کړه
تر څو به خلقو و تـه ا ســر ې کـو ې

✲ ✲ ✲

پر ا ته و ی ستړ ی تل له و لا ړ و
ځـا ن لـکه ژ بـه سا ته لـه دا ړ و
شینوارِ یه ! بل څوك به دې په کار نه شی
تا لو خولتو ند وی ، په خپلو لیاړو

✲ ✲ ✲

وخت نما ز یګر دی، ځی په تلو ار دی
ز ړ ګی مې بې تا ، ډ پر نـا قـر ار دی
جوړ ما یا دو ې ، د خیر د ې یا د شې
تر میا نه زمو نږ ، دز ړ و نو تا ر دی

سمند د عیش چه شي پـه تـر پکه
ایسا ر به نـه شـي د غم کـو تکـه
که‌وی دعقل شه سوار سپور پـر ې
تعلیم یې کړ ی وی لـه از بـکـه



متو کل چه و ی هغه پسخا ك نه لر ی
فلك صفت وی په کور که خاك نه لر ی
شینوار یه ا و ړ ه له غما ز خه کړ ې
ز ر چه صفا وی له او ره باك نه لر ی



شهدو شکر شه ، ز هر و کندلې ډر شه
چېر ته بالا شه ا و چېر ته ز ډر شه
بنه بهوی داسې چه څوك دې تو کړ ی
د چا تـر حلقه شینو ا ر یه تېر شـه



ته دو صال او فر اق په با ب کښې
هه کړ ه تحقیق یې په خو ند عذاب کښې
دا نعام ز ړ ی دسز ا و ړ ه بنه وی
هله چه حال یې وی په حجاب کښې



له بحر ه وو تې لکه کو هـر شـه
ذ ره پر پشا نه وی لکه د لمر شـه
طا لب العلمه اوس چه کامیاب شو ې
لکه ر هر و ې ، هسې ر هبر شه

که جمع غواړې، نو خرڅ دې جمع کړه
چه خرڅ دې جمع شی، د جمعې طمع کړه
تېل دې بې کاره دی چه بې له کاره دی
محفل رڼا غواړی رو ښا نه شمع کړه



د یار په سر کښې غرور هوا ده
زما په زړه کښې عجز و وفا ده
دزور ورو دوستی ده ګرانه
د میا شې نه شی یاری له باده



خر د حمزه ته سر په پښو ردی
پرې ا ښښې ولې تاد زړه کور دی
له صحرا غوږ کړه د ښهر لور ته
ته یې که نه یې هلته کښې شور دی



د برق صفت شه له ستر ګو تېر شه
چه نه جاروزی، دور ځو پېر شه
یار تـه به هلتـه رسې شینواریـه
لـه خپله ځـا نـه پخپله هېر شـه



چه زړه روښان شی دعشق په کار کښې
تیاره د سېب سوځی په نار کښې
شینوار یه چه شی روښا نه شمع
لو ګی شی ترینه بیا په رفتار کښې

بیا راغی ژمی و ا ر د شلغم د ی
صفرا کړه او ړی ماته ، بلغم د ی
مزه نیشکر ر ا و ړ ه شینو ار یه
هر چا لره نن جوړ چې نلغم د ی



د انوې نوې چه ز ه توبې کړم
د نفس اود زړه تر منځ جوړې کړم
ناسوت، ملکوت مې په یور تنګ کړل
زه یم لا هغه هسې پېر چې کړم



سرخې کړې اشنا او نه غازه کړې
ز ما ا سو پلو تر و تا ز ه کړې
غر و ر مه کو ه د ګلا ب ګله
نسیم د سبا ته خپر ا ز ه کړې



ته یې که نه یې ډک یم له بو یه
کو ې ا سو پلی له خپله خو یه
یو با د یې با ده نور څه خو نه یې
نسیم یا د پېر ی زما له ر و یه



توبې مې وکړې زهد په لاس را نه غی
چه مې کړې ماتې خوف و هراس را نه غی
پر هر د ز و لن نه ا شنا نه شو
نه به شوم نه بد، مرهم پرې راس را نه غی

زړګیه ولې داسې په شور یې
سرا و تندی و هې، ولې نسکور یې
اشنا که نشته خیال خویې شته دی
وحشی ته ولې اوس له خپل کور یې



بل مې په زړه کښې شول چړ اغو نه
د اشنا تنګ کړل تا زه د اغو نه
پسرلی چه لاړ شی و اوره شینواریه!
د پانړو ګلو نړ ك شی بـا غو نـه



یار چه کم سن ؤ ما انتظار کړ
اوس چه دی ځوان شو ځکه مې یار کړ
شینواریه! ګل چه جوړ له غوټۍ شو
بلبل پرې ځکه بیا جوړ کوکار کړ



بد چه تو به وکا راضی تواب شی
نیکی ثابته، ګناه یې خواب شی
دین غلط کارو ته هم انعام ورکړی
په سجده سهوه یې نور ثواب شی



نیك یې په بد و چه ته تاخیر لری
بدیې چه بدو و ته زړه خیر لری
شینواریه غم مه کوه چه کامل پیر لری
څه کامل پیر لرې چه وینښ ضمیر لری

نېکان و بل ته سترې مشي وايي
هم په خواب کښې ور ته خوارمشي وايي
چه دا سې نه وي نو لېونى دى
پېښو ته کورې اوسپى ته پشي وايي



فاروق (۱) رانه غې وخت مازيګر دى
د سراى تمبو ته زما نظر دى
نظر مې درومې په کوم يو ګل پسې
دا په خزان کښې د څه اثر دى



خدايه صفا مې کړې زړه له زنګه
له کفر و شرکه، دفساد و جنګه
محتاج مې مه کړې و ما سوا ته
هميشه ته شې زما په ننګه



الفت دعاشق په زړه ضرور وى
تيارې يې د غم خندا د نور وى
او به د ژوند وى خو ښکارى زهر
ترخه وى شراب، خوږيې سرور وى



پټو کښې ځاى ځاى دى کور پسرى (۲)
استو ګڼې دغم نه ګرځى برى
په سيل دقدرت تر و تازه دى
خبر ترې څه دى دا کور بصرى

(۱)ـ محمد اکرم فاروق شينوارى (۲) خانه بدوش

برنا ته تورې ، پړه دچين ښکاري
وږی ښاروی ته بيابان شين ښکاري
په خپل خپل رنګ وی هر څه شينواريه!
خووا ورو تللی ته هر يو شی سپين ښکاري



روښان دې مخ وی چه خاندې خاندې
تېرې دې زلفې چا پېره باندې
په هر وصال کښې غم د فراق شته
تياره ضرور ده د ږ بوې لاندې



حال څه شی چه راز دعشق په خوله شی
وطـن مـې دزړه او بـه او بـه شـی
دتنګې نه د سيند حال تـه ګوره
نظر کوه څنګه يې تېر بـد ه شی



دسـر کـو نـو پـه غـاړې غـاړې
د بـجلۍ د نـکې ستـنې ولاړې
ګوری په ښکته سر يې او چت دی
ددوی په څېر شه که لوړی غواړې



د غره لمن د ه سر سبز ه لاندې
ږکې وريځې را غلې پرې باندې
په شاه لطيف کښې دږمو رقص دی
که تارو ګی دی له شوقه خاندې

که دې په عمر چــا ته اسره شي
هغه اسره به پــه و ینو سره شي
شینوار یه خدای ته غم دسبا پر پرېږده
دد نیا کــار به کله پــوره شي



سفر له ځا نه، ځــان تــه سفر دی
نظر و بــل تــه ، ځــان ته نظر دی
خیال دې د بل ته ، ځان و ته خیال دی
پــه آ ینه کښې هــم ستا بشر دی



لــږ تعلق هم د د نیــا غم لــری
انقلاب نشته چه خوك ترې رم لری
بــو ټی بــه هغه قلــمی نــه شــی
پاس په تنه چه ښا خو نه کم لری



سپزل ګڼه سول دوه طرف اور دی
چه لمردی ګرم سوی تك تور دی
چپــیا کړ ی د ګل ، بلبل په چغو
یو زه نه یمه ، فطرت په شور دی



درده د اولې نن را بېدار شوې
له کومې لارې ، په کومه لار شوې
ای د عو یدا ره د مــړ ښت و لې
داسې تر زره بېر ته نهار شوې

په ستر ګو زړه کښې مې ځای شه درده
خلوت جلوت کښې نمای شه درده
ژړا ژړا شه هې های شه درده
کاروان مراد دې ته سرای شه درده



زما د ستر ګو نظر شه درده
بیا لکه برق ترې بهر شه درده
د زړه د نیا مې چه زا سوتې ده
ملکو تې یو ، خبر شه درده



که را بیدار مې شې د رده در ده
د زړه دنیا مې ده سر د ه سر ده
د ما سو اغم را ته حجاب دی
لکه د ړوند یم له خپله ګر ده



زه په ځوانۍ کښې ضعیف کړم یم
پاتې لهلا رې ، که په لا رسم یم
چه اینې شوی ، نه پورته کېږی
د عشق په لا ر کښې هغه قدم یم



که دعالم او د بزرګ زوی شوې
چه علم نه لری نوخنګه پوی شوې
چه هنر نه لرې دعوی دخه کړې
چه سخو ندر نه یې نو کله ګوی شوې

چه را په یـا د شي بشکـلی صنم مې
ستر ګوتـه راشي د زړه ګی نـم مې
او بـه دژوند مې دمخ پـه یـا د ځی
ـنګهت د ګـلو پـه هـرقـد م مـې

✿ ✿ ✿

د ارو دې خـه کړم د عشق فـا لجه
طمع بـه خـه کړ م لـه معـا لجه
د دې مریض شي طبیب په دې کښې
زده کړ ه یې نشته له یو کـا لجـه

✿ ✿ ✿

چه سرداری کا ، هغه خواری کا
هغه خواری کا ، چه سردار ی کا
ز میند اری کا ، ثمر یې و ا خلی
ثمر یې و ا خلی ، ز میند اری کا

✿ ✿ ✿

پـه آیـنه کښې د هستیو ګـو ره
پکښې خپل عکس د نیستیو وګو ره
مر ګک دی که ژو ند دی پکښې ر نګین ښکاری
دفطر ت لو بې او مستیو وګـو ر ه

✿ ✿ ✿

په ګل د بلبل تر ا نه و ګـو ر ه
د ر ند کعبه ده میخا نه و ګـو ر ه
عقل یې چپر ته په عاشق بدمه وا یه
بت پر ست ګور ه بت خا نه وګور ه

✿ ✿ ✿

واصل په جوش کښې و ی سینه نه وینی
بر په بر جل چه شي نو زینه نه وینی
شینوا ر یه ! و ځی نسبت له منځه
خو ک چه خپل عکس وینی آ ینه نه وینی

چه وایی مه‌وایه، چه نه وایی ته وایه
چه نه‌وایی ته‌وایه، چه‌وایی مه‌وایه
چه بدوی ښه‌وایه، ترخه خواږه وایه
ترخه خواږه وایه، چه بدوی ښه وایه



کاسه دسترگو دحریص پوره نه شوه
دزړه آرام یې ددنیا حوره نه شوه
قا نعه صبر کوه بیا پس له هغه وایه
که بې‌حجابه نه‌شوا ومور پرې بوره نه‌شوه



شپه چه په سترگو کښې څوك سبا کا
اد یار په غم کښې چه وا ویلا کا
هغه صادق نه وی، صادق هغه دی
چه خوب په وینه دیا ررضا کا



چه څوك ژړ انه کا، هغه ژ ړا کا
چه څوك ثنا نه کا، هغه ثنا کا
مرض غو ښتل هم درنځ دوا ده
چه څوك دو انه کا، هغه دوا کا



چه‌غم بوره کړل ،موردې پرې بوره نه‌شي
له‌توره‌نه جاروزی ،ماته‌دې،توره نه‌شي
چه څوك پوره وی د ننگك په کار کښې
څولی دسوال به یې چیرې پوره نه شي

کله به د غه وړی شړیه شی
شړیه وینځه دې که سپین وړیه شی
دښمن به چیر ې په ښو خپل نه شی
شینواریه ! تیر ې که سل پیړیه شی



واعظه نو رې خبر ې وا یه
ګنلی یر دې بس کړه ، شکرې وا یه
لکه بلبل شه ښیو ه بیا ن ته
سند رې وا یه ، نا درې وا یه



در له سزا شی خپله جزا ستا
سز ا خو خو دوی در له سزا ستا
نیکی کو ې د بدیه د پا ر ه
غزا غزا کا ندی په غزا ستا



شینواریه ! ما ته دننا خو له کړه
د بې رنګیه استا زی مله کړه
چه یاردې نوم اونښان هیڅ نه لری
د بې لا ریه په لا ر ه تلله کړه



چه مې شرابو ته کاته شی
توبه ، دزړه نه مې پهواته شی
تل ماتول وی ، توبه کول وی
دلمرخاته وی، بیا پریواته شی

لاپې چه هر څوك د خپل هنر كا
مستي په جر جر لکه دخر كا
كيميا له بل نه ، نه له خپل ځانه
چه بل يې ونښيي نو تامبه زر كا



زيات شولو عمر زما له دير شو
په ناپوهۍ او مستۍ كښې تير شو
اوس چه عاقل شوم ددې نه پسته
لږوي كه پيروي وايم چه پير شو



د يار جوار يې اوږه اوږه كا
لکه چه ژرنده د جوار ژره كا
او چه يې پوخ كړي پخلي د مينې
بيا يې په مينه خلق خوا ږه كا



مين هغه كا ، چه پتنګا ن كا
غه ليونى كا ، چه عاشقا ن كا
عاشقان هغه دي چه صادقان دي
صادقان هغه دي چه فنا ځان كا



چه شپه شي تېره سحر خندا كا
د غه خندا مې تل په ژړا كا
څوك په خندا دي څوك په ژړا دي
څوك دي هغه كا ، څوك دي چه دا كا

که نوې نوې اشنا جفا کا
ستمه نوې نوې په ما کا
لس نوې نوې، نورې زړې دی
که دا په ما کا، نوی په چا کا



جنډه دسخا چه هر څوك لکه کا
کوی په همت نه یی له لکه کا
دولت چه خوسا نه کړی سخی دی
منګل د سخا به یې ملا کلکه کا



تل بې هنره لاف د نسب کا
نه یې په دین کا، نه په خپل رب کا
چه نه یې دین وی نه یې سادین وی
ادب یې نه کیږی او نه ادب کا



غریب مې تکل د ډېر ګریان کا
دتن وطن به وران په طوفان کا
شینواریه! نشته په دې کښې شك څه
وریځ چه ګرځی اخر باران کا



چه مر غلرې غواړې غو یې شته
دغم په سینه کښې دعیش چپې شته
«فاروق» چه غواړی ددنیا ناوې
داسې ځلمی لره سختې جو یې شته

غنی چه هر چا لره خه ورکا
بیا یې ز باد نه ورشي په‌ورکا
غني یې مه ګڼه، غني هغه دی
غر د نېکۍ چه د مچ وزر کا



چه د روازه شي د کرم بېرته
ما بد بختۍ کړې ځنې په بېرته
چه د کریم نه څوك بې نوا شي
وواېه بیا به چه د رومی چېرته



چه پوخ په کار کښې د پاس انفاس شي
ترې مخالف‌ی چه نا سپاس شي
خیال یې جوړ نه وی و آینې ته
چه پکښې عکس له چپه، راس شي



داسې به ښه وی، ښه پرې خبر شه
دعا قلا نی په و ینا سر شه
که سر دې روغ وی په سر خبر شه
ګڼی په غر و نو رغو نو سر شه



بیا پسرلی شو د تن نهاله
خالی دې شو له د زړه ګی جاله
مرغان ترې د رومی دفر یادونو
له برقه تښتې د چا تر جاله

نن په غصه کښې چه داسې زیږ یږی
چاز یږ ې کړ ی چه په ملا تړ یږی
دښمنی مه کو ه کـه عقـلمند یـې
غا بښ به‌دې ماتشی مه‌چیچه تړ ې



تر څو چه نـه و ی د عقـل ر ڼـې
د خو شحا لی نـښتـه کـر کـڼـې
مچ د حر ص چه په ا لو ا تـه شـی
په جا ل یې نیـسی د مـکر غـڼـې



لذ یذ شر ا ب و ی پکښې ا یشېږ ی
لو ښی د ز ړ ه مې تر ې نه‌تشیږ ی
وینه زما چه د ه ، تو ر ه پخه د ه
ر ند انو را شی او س به و پشیږ ی



په کور کښې څو انه لـوردحیا لـورده
پټه په کور کښې ښکاره هر لور ده
په سا د ه تـو ب یې چه غلط نه شې
څو که نا پو هه په در ې څلورده



چه د ې حا فظ شی د بل د تېـغ نه
هغه خو ړ ا ل د ی، مه‌ګڼه تېغنه
ا فت به نه ر ا ځی که ته سخی یې
که ځان دې وسا تې تل ددر یـغ نه

دژوندپه‌سپند کښي شناز دصبر ښه‌دی
لکه د«قدر» دقدر ښه دی
په‌چپو باندي چپه‌شه پوري وځه
ګڼه‌په تل کښي د ر لره قبرښه‌دی



په فن د مکر و ریا کښي طاقه
د هستۍ شرمه په تهذیب شاقه
د زړه په طاق کښي ډیوه دنورنه لري
تور زړه په بدو لارو ځي چاقه



چه نفس دې‌نه اوړی له بده کاره
رڼا یې غواړې د خپه د پاره
تر هغه مه ګوره امید د فصل
چه خپل پټی دې‌نه کړې شد یاره



د ملك پټی د ې مه‌شه بې ګوډه
ما ته دې مه شه د همت ګوډه
دغلا میږ د ورپرځ نه بچ شه
چه موترو یې نه شی کوډه



نا جا نه کو ڼه زړه امې وا وره
ولې دې یخ دی زړه لکه واوره
ته له غرور ه ګو راډې اسما ن ته
زه ښکلوم دې د تلو خا و ره

چه خوف اوو پره څوك د خپل سر کا
د نفس کلا به څر نګه سر کا
عقل رهزن دی د عشق په لار کښې
شیطا ن به څه کا، څه چه هنر کا



یوی شه پرې ته چه په څه را نه غلې
څه خو را غلی یې، که څه را نه غلې
دیار نسبت هم دیار وصا ل دی
شته جدایی دې که ته را نه غلې



که په سپر وی که په ګټکه وی
که وی په تو ره که په چو که وی
بد ن دې وسا ته، ګڼی نو پوه شه
چه کوم ځای خوږشی هغه سکه وی



زه دې قر با ن شم د هند برسا ته
په پښه کا ل کښې ګر می د ه ما ته
په (فلیر ه) کښې چه ګا ډی ود ر یږد
ښکاره ډ نیوونه شول ځای په ځای ما ته

فلیره ـ ٤٫٨٫٤٠



دازه چه ګر ځم په خپل حبیب پسې
دزړه مر هم لره چه په طبیب پسې
وایی په خلکو پسې ګرځی نصیب خپل
زه دایم ګرځم په خپل نصیب پسې

کو مې کا نـې چه په مـا حبیب کـا
لـکه چـه ګل یې په عـندلـیب کا
همه غوږ غوږوی خو فریاد نه اوری
ځان که تر ې لرې او یا قریب کا



دیار له جوره مړشی یو ځل سوځی
چه څوک پخپله سوځی له هغه بل سوځی
پتنګ جل بل شی له غمه خلاص شی
بیا پسته شمع و ګوره تل سوځی



نه خوزه شمع یم او نه پتنګ یم
نه پـیر فقیر یـم او نه ملنګ یـم
سوزوساز نه لرم، زه حمزه هغه یم
د بې رنګۍ په رنګ کښې رنګ یم



لټې او سطې بـویه نه دخـره کټې
په جر جر مه مستیږه مه و هه لټې
د سړی توب په ځای چه ما کټې ته
نـه د ې وجـود ۇ او نـه دې پـټې



اراده ګلکه لره، په پستومه پستیږه
همت بلند لره په خوی کښې مه پستیږه
په خو شا مد و د چا غلط مه شه
د خره په مثل په جر جر مه مستیږه

بد په بد ی ه پسې تو به فضو له شی
لکه لا هو چه خلی له ځو له هی
نژ دې د رشل ته چه شی تمبه شو ر نه کوی
ور وستی ګناه ښه ده تو به قبو له شی

✲ ✲ ✲

ګلې شه د میني ، و با غ ته ګلې شه
د بلبل غو ند ې له مستی ګلې شه
که ګو ټ اوشل یې خو ناب اخر اج کړه
په خپله خو نه کښې د ګلو و ټ شه

✲ ✲ ✲

خو ب د زړ ګی به می کله کم شی
نه په د عا شی ، نه په مر هم شی
ښخوا چه کوم کار ستا په کرم شو
او س به هغه کا ر ستا په ستم شی

اجمیر -۱۱-۸-۴۰

✲ ✲ ✲

چه ځوانی را شی ادایې وشور وی
خپله خبر ه بې ضد ه نه نو ر و ی
شینو ازیه! ځوان خو په مستی ښه ښکاری
ښه ښکا ری سر وی چه با دې وښو ر وی

✲ ✲ ✲

ځوا نا نو لره خوا هش د وا و ی
زړ و لـر ه غـم ژ ړ ا قضـا و ی
ښځې پا ځې په با د مستې تا ز ه شی
پر یو ځی و چې ، سر په غو غا و ی

ډیلی -۱۵-۸-۴۰

داد لویه د ې چه لاف کا ندې
پوی شوم په عقل پورې د ې خاندې
مقابل مه شه د زړه خاوندته
برج یې دلوړ غره په لمن باندې



ډېر یاد ول د یار هېر ول دی
کاروان له سر ایه ژرتېر ول دی
په اندازه یې کارول نه وی
شکست دتوری ډېر تېر ول دی



رقیب چه وینی یې کوکې سپینې
ورته یې مړې شی، له وار ه سپینې
شینواریه! مه وینه دا څه چه وینی
چه څې داوښکو په ځای د ې وینې



ای د پی مخی د ستر ګو ډ نډه
که مې خوړ و به کړې د زړه ډ نډه
پسرلی پرې راوله چه ګلستان شی
چه د بېلتون په خزان د ه شنډه



چه مې په برخه راغی شباب شو
په وینه مست یم پسرلی مې خواب شو
اوس وخت دمېودی، ساقی راوړه
په اوردعشق مې، چه زړه کباب شو

زه دې لمر مخيه له هجر ه يا ر ه
ستي په عشق دې كړم بې ا نګا ره
زه دې وصال كښې له هجر ه مر مه
نه چه له عا ر ه ا و نه له نا ر ه



تو ر ې و ر يځې ، د چا له غمه
د نيا لمد ه كړ ې له خپله نمه
خند ا د چمن ستا له ژ ړ ا د ه
تا ز ه ګلونه د ی ستا له د مه



سيا لی به ځه كا ، نهر د د و ړ ې
تل په قسمت يی خوراك وی دوړ ې
دوړی به ځه وكا چه خلاصې نه شی
د عقل ستر ګې د نصيب سو ړ ې



اوس بهمې خو لې ته فغان او شور ر ا شی
غم چه ايسا رؤد غـم بـه زور را شـی
سپين وينتـه مه باسه ، ښځې مثل كا
ګڼی په عذر به يې سل نو ر را شی



په لو ړ و تند و به ګله هسـپر شی
غمو نه ډ ېر ګڼه چه په تا تير شی
مثا ل كه غو ا ړې ، نو عجيبه شته
ر و ژه نژ دې شی ملا يان ډېر شی

پیغور تل نوی وی، هر څوک ځوروی ښی
خوږلن سپرغی لری که ازویسو ښی
مرهم به څه وکا، د شفقت بیا
داغ به ورکه نه شی که زخم جوړ ښی

✲ ✲ ✲

ته چه ولاړه یې په سپی رقیب
ولاړه شی وږی زړه د حبیب
وږی د کوکې د طعام مه هیر وه
څوک زده، رندان زده، خوند دز بیب

✲ ✲ ✲

اکثر چه پیړ وی بې غیر ته وی
اعتبار نه لری چه بد سیر ته وی
غیر تیان وچ وی بدنیی وده نه کا
ډک یې وګړی که له شهر ته وی

✲ ✲ ✲

رنځ د بیلتون دی زماو اریز
که وصال هم کړی یارغور یز
معلومه نه ده څو چه ژوندی یم
لکه مارغه به تل یم په کور یز

✲ ✲ ✲

په پیروی کښې د خپل صنم
روح می پیر وې خوری د نعم
زه یې ګو یا کړم په ګونګه ژبه
ګویا عرب شوم که یم عجم

لو ګې د شمعې له مخ چا پېر شول
د خط سره یې ناز ونه هېر شول
اوس یې د کو کو ګبین ارزان دی
چه تورمېږی یې په مخ را ډېر شول



فراق دې یاره شنډې په ما کا
دزړه داغونه سوا سوا کا
په توره شپه کښې ستوری په یاد کړه
چه تیاره ډېره شی ډېره رڼا کا



غم د هستی مې چه نه هېر یږی
ډېر و سوا سو نه پرې را تېر یږی
چه تنګ راتنګ پرې د خلکو ډېر وی
په ابر باران هم ختې ډېر یږی



په ریاضت کښې چه تن صفا شی
د ځان د دیدنه پرده جدا شی
په کثیف څیز خوږ تووی سوری
په آینه کښې عکس نما شی



تیرې د هجر په ما تې سر شی
چه دوه خوا خوږې مخا مخ ور شی
سوری د عکس وی نه د معکوس
د یو په بل کښې ور شی در بر شی

قاصد چه راشي د يار له دره
د اختر مياشت شي جوړه را د بره
رقيب چه راشي يقين مې وشي
چه روژه مخکښې ده له اختره



د نبوي لمر، رڼا امامه
تيار ره دې لرې کړه له اسلامه
پېږۍ شوې تېرې لا به تېر پېږي
قصه د غم دې نه شوه تمامه



وه فروري کال يو ځلو پښتم ؤ
زمان خپرې کښې مې قدم ؤ
مورچې جوړه پدې ديورپ جنګ ؤ
تاريخ مې ياد شوچه ديار لسم ؤ



چه تېر شي هېر شي، چه هېر شي تېر شي
چه هېر شي تېر شي، چه تېر شي هېر شي
چه زېر شي ګېر شي، چه ګېر شي زېر شي
چه ګېر شي زېر شي، چه زېر شي ګېر شي



ترې بې خبره مه شې ای زويه
ژرې دزړه له هند ارې زدويه
چه پرې لوګې وې د ګنا هونو
نېکې کوه پسې ای زماپويه

نه یم غلط حرف چه یا د شوم هېر شوم
نه مشتبه یم چه خلا ص شوم ګېر شو م
ز ېـ ه مې در یـاب د ی د حکمتونـو
نـه چـه سیلاب یـم ر ا غلم او تېر شوم



په خوند کښې شیریم ، په معنی شېر یم
ازاد له هر څه خو یا ر ته ګیر یم
ابتدایـی یـم ، ا نتها یـی یـم
په هر یو رنګ یم ، ز بر او ز ېر یم



چه مې په تاشوه دزړه ګی مینه
مینه شوه ور انه د تن سنګینه
جبین مې ایښی د نیاز و تا ته
چه بهره مو مم ستا له جبینه



چه ما ته ګور ې ، وچا ته ګورې
وچا ته ګور ې ، چه ما ته ګو ر ې
ته ما ته ګو ر ې ، زه تا ته ګو ر م
زه تا ته ګو رم ، ته ما ته ګو ر ې

پر یشانی راوړی ،خندا، په ګل کښې
نغمه سنجی راوړی ، غم په بلبل کښې
که پر یشانی ده که غم ژ وند ون دی
د شانې ګو ر ه غا بښ په کا کل کښې



جر منه لا ړ ه ، مز ه د ې لا ړ ه
طاقت دې لا ړو ، حمله دې لا ړه
او س بارا نونه به په تا د غم و ی
قوت‌دې مات شو ، شپږه دې لا ړ ه
لوا ډ ګی -٢٧ -٤-٤١



چه ځان ته ګورم زړه مې شین شین ښکاری
پکښې ار م جو ړ د چین ما چین ښکا ر ی
چه پکښې نقش د یـا ر صـو ر ت د ی
دجـهان هـر شی را تـه ر نـګین ښکـا ر ی



دژو نـدلـه ملکه چـه را بـهر شوم
رازیې چه پټ‌ؤ راغلم پرې سر شو م
او به د ژوند خو زما ژو ندو ن ؤ
چه ژوندی مړیم ،هلته خبر شو م
لوا ډ ګی -١٠-٧- ٤١

چه ور یخ را شی او باران نـه کا
ښایی خپل فضل خو یزدا ن نه کا
د سر کـښـا نـو سر ه د ا کېږ ی
خو عجیبه د ه چه تو فا ن نـه کا

✡ ✡ ✡

له خو یه ټوغ یې، څو مره چه شیك یې
ر و حا نیت لر ه لـکه څو څـك یې
ګو رې اسمان ته ، پید ا له ځمکې
نه لرې خا و ر ې ، هغه ښا ئك یې

✡ ✡ ✡

وطنه لا ړ ل، غر و نه دې و ران شو ل
میدان ګړ ئنګ او غر و نه میدان شو ل
د غر ه په ا ړ خ چه نظر و کـړ م
دسر کو نو پر ې ښا ما ر ان شو ل

✡ ✡ ✡

و طنه لا ړ ې خر ا ب تراب شوې
ز ړ ه د بخیل شوې په خرخ کباب شوې
پـه پیما نـو کښې د مغر بیا نـو
زمو نږ دو ینې خوا ږه شراب شوې
لو ا ړ ګی -۳-۸-۴۱

✡ ✡ ✡

ما و ر ا نو لو لر ه آ بـا د کـړ ه
څه تعلق خو ر ا با ندې ز باد کړ ه
که د ې شی و پر ه ز ما له یا د ه
نـوهېر و لـو لره مـې یـا د کـړ ه

د اند هېرى نه د وه مینه لرې
کوم دعا نه سره خبرې
دلته شو تېنګک دلیلی مجنون دی
یکښې خبرې شته دی نادرې



لیلی مجنون مې په پښتو جوړه کړه
د پښتو ن شوق مې د قلم سوړه کړه
د بمبئ د هوا خره به
په محلمی توب کښې یې حمزه زوړه کړه
بمبئ ۱ دسمبر ۱۹٤۱ ع



خیډ دعوا نیو دحسرت په لور ولګه
دژوند په فصل یې چینجی دتور ولګه
چه سیرت نه لري، صورت یې مه شه روزی
چه غنم لاړل په د روزه اور و لګه



ستا باغ د دعوا نیو ګلو نه سپړی اشنا
دا غونه مې ستا د مینې وړی اشنا
راغلی دی بهار زه په زندان کښې یمه
په کور کښې مې د پر سوری جوړی کړی اشنا



اشنا مې نقش و نګار ته پا تې دی
پیغمبري ګل بهار ته پا تې دی
قاصدیوازې دی خط هم په لاس نه لري
وهمی زړه یې سینګا ر ته پا تې دی

در لا ندې ناست یو ، د خرما و نې
ای طو بـی ظلې فـر دو س لمنې
غلا م سر ور د ی او دو یم زه یم
ستړه د تن مو ر اسپړ ی غنی
کمپنی باغ پښو ر ـ ۲۳ ر ۱۲ ر ٤۲

۞ ۞ ۞

د عشق دردو نوچه څو کثرت و کړ
ما د مرهم نه هو مره نفرت و کړ
په مد ا مې ژړا ځکه خو شحال یم
ارمان مې ډ ېر عیش و عشرت و کړ

۞ ۞ ۞

څو چه د نفس په وژ لو مټ نه کا
و ران چه له میا نه د هستۍ خټ نه کا
صوفي هغه دی چه ز ړه صفا لری
ګنې دصوف چپنه به یې عیب پټ نه کا

۞ ۞ ۞

چه د عر فان په ښکا ر پسې و تم
د ګمرا هیو په جال کښې کښېو تم
راز دلوړ تیامې هم هله و پېژا ند
چه مې یقین وشوچه لاړم پرې وتم

۞ ۞ ۞

ډوډۍ خو ند نا که ددرو یزې نه ده
د جوما تونو د در وا زې نه د ه
صحت چه نه وی د ماغ یې څه و ی
د طا لب ګېډ ه د اند ا زې نه ده

په قسم قسم مې پـر زوې تـه
څه پوول پوول مې غور زوې ته
ای بې قـرار ه زما قسمته
دا چېر ته چېرته مې ګرزوې ته
پچلی - ۲۹ ر ۹ ر ٤۷



د حق سپر لیه! دنیا با غو نه کړه
تا زه مې بېر ته دزړه دا غو نه کړه
نوی بهار دی را ته مسکی شه
دزړه دا غونه مې چرا غو نه کړه



د ښکلیو ښکلیه زړګی مې جمع کړه
ورکه له غیر مې پر پښا نه طمع کړه
دزړه محفل مې مخ روڼی غوا ړی
پکښې رو ښا نه د جبین شمع کړه



د تا په لوړو کښې زما ژوړې دی
څو که قوی مې د خیال وزرې دی
رسېدل تا تـه ممفر د تا نه
ستړی خیا لواله خوشې خبرې دی



بې وجود نه څه نور اد راك نشته
که خلق ومنی، نو هم یې باك اشته
وجود ظاهر دی، خلق با طن دی
بې له او بو، دحباب اد راك نشته

پو ر ته فلك دى او زه په ښکته يم
داغلت خيال ؤ ، اوس پوه په پته يم
هغه هستي يم ، چه په فلك شو م
اوس لاندې ښکارم كه څو اوچته يم
لواړګى ـ ۸ر ۸ ر ٤٤

باران ته پروت يې ، د ځان ژړا کړې
شپېو د غم جو ړ ، ته و ا رخطا کړې
لكه دراز په ګوګل كښې پټ اوسه
ګڼې كه اوښكه شې ،ځان به فنا کړې



ارګى له خپله او ره جليا دى
چه داسې نه ګڼى ، هغه خطادى
زه به د بل نه و لې ګيله کړ م
څه چه په ما دى ، هغه له مادى
پېښور ـ۳۰ر ۱ ر٤٧



بلبل دزړه مې بيا په كوكاردى
صحرا كښې دخيال نوى بهار دى
شينو اريه !صحرا ،ښکاري جنت جوړه
اشنا په كور كښې سر په سينګاردى



ما مستقبل او ماضى را جمع کړ ل
پرون ، سبا مې چه د نن شمع کړل
وختو نه څو مر ه كه بې نيا ز تلل
لكه پتنګك مې د ځان په طمع کړل

ډېر چه د هجر ګرمۍ و هلی یم
دا ورځې میا شو ، بدبد خوړ لی یم
چه وصا ل و شو ، د منې شپې د ی
ز ه سړ ه لیر ې تېر نیو لی یم



ارمان مې دود شو ، لاړلو خپو ر شو
پسرلی مې سیزی را ته سور اور شو
ځوانی خزان شوه وبنته مې سپین شول
د ګلر خا نو را نه ز ړه تو ر شو



جانان مې ولید جهان رنګین ښکا ری
د سرو په شا نې ر ا ته ساډین ښکاری
دنیا بد له شوه ز ما په عشق کښې
ښکنځل د اشنا را ته ګبین ښکاری



چه د نیمګړ ې د نیا نه تېر شوی ؟
لاړې له خپلو ، خپلوانو هېر شوی ؟
او س مو د قبر نښا نې نشته
لکه چه نه وی ، د نشت په څپر شوی ؟
وړه هد یره ـ لوا ړه کی ۷ ر ۸ ر ۴۸



په ضبطمې څه شی چه وعده دې تېره شی
چه سوز مې زیات شی ژړ ا بر سېر ه شی
لا ز م د هـر شیـز عکس ا لعمـل د ی
اکثر باران شی ، چه ګر می ډېر ه شی

زه کله و ران شم، کله ودان شم
بېرته ودان شم، کله چه وران شم
یا مې تعمیر کړه که تنګوې مې
یاخو مې پرېږده چه بیابان شم

✲ ✲ ✲

نه په کعبه کښې، نه بت خانه کښې
نه په زمزم کښې نه میخانه کښې
نه مې په زړه کښې، نه په لېمو کښې
خوشې طلب کړم په ویرانه کښې

✲ ✲ ✲

نه مې ملك کړه، نه مې حیوان کړه
نه مې ټول عشق کړه نه مې عصیان کړه
زه مسلمان یم او سط مې خوښ دی
زما خدا لقه ما خو انسان کړه

✲ ✲ ✲

ځان ته غاورۍ په فردیت کښې
چه راغلو باغ ته، شو په حیرت کښې
ګل ته مخ ګندي خپلې خامۍ شوې
چه ورداخل شو په جمعیت کښې

✲ ✲ ✲

همه قاموته لوی اوواړه جوړ شول
څوك دوخت ژبې څوك یې لېمه جوړ شول
ستا له غیر ته یوه پوښتنه کوم
پښتو نه وایه چه له تا څه جوړ شول
لواړګی ۵،۸،۵۳

جوړ نن په نوی ستم دې مټ کړ
چه خامو شیو دې را ته ښټ کړ
اوس که و یېږي ، مزه یې نشته
د نغمې حسن الفاظو پټ کړ

✿ ✿ ✿

د حق له تخمه شجر پیدا شو
د دې شجر نه ثمر پیدا شو
د محمد (ص) ؤ که رحمت راغی
د مبتدا نه خبر پیدا شو

✿ ✿ ✿

د باطل زړه کښې خطر پیدا شو
تېرې بو ګنېږي سحر پیدا شو
ضمیر مسکی شو د انسانانو
ستر ګې پیدا شوې نظر پیدا شو

✿ ✿ ✿

د یو زړه لار چه د بل سره شي
په تنګ را تګ یې د خیال پخه شي
په کارولو نوی زړه یېږی
چه نه کاریږی لاره زړه شي

✿ ✿ ✿

هغه جبین ؤ او د ایې خال ؤ
هغه یو ذات ؤ ، د ایې جمال ؤ
که هغه تخم ، د ایې شجر شو
دغه تفصیل د هغه اجمال شو

پېښور ـ ۱۲/٤/۵۵

غم د جهان یم ، په جهان بار نه شوم
خوش په جهان وم چه د چا یار نه شوم
دخوب په خپر خو ، در تلی شم سترگو ته
خپر که د سترگو دې انتظار نه شوم

✲ ✲ ✲

لژ خو وزگار شه ځان په کار مه وژنه
همدغه ځان دې یار دی یار مه وژنه
وخت د آرام کښې کار حرام وگڼه
د پلتی لاندې چپرې مار مه وژنه

✲ ✲ ✲

د اغبرد ننه بهر د چاؤ
احساس د خبر ، خبر د چاؤ
غایب شو نظر ، نظر مې راغی
قربان ترې نظر ، نظر د چاؤ

✲ ✲ ✲

زه یم ناتوانه غو ښتنې ډېرې دی
نظر مې یو دی ، کتنې ډېرې دی
ته په هر څه کښې را ته څرگند شه
زړگی مې یو دی ، بلنې ډېرې دی

✲ ✲ ✲

دیدن په ورځ شو ، اوس پاتې شپې شوې
ښکلی راو وتل ، ماتې پر د څپې شوې
ننو ښکلیو ، کسه ز لفې پرې کړې
ښه ده شپې لنډې ورځې اوږدې شوې

ازاده سیمه د مینې نوده
مزه یې څکله د ورځو شپو ده
خپل یې اسمان دی ، خپله یې ځمکه
خپل یې دی غرونه ، خپله ورشو ده

د شینوارو پېښه -۱۵-۹-٦٤-

په تصور کښې چه مدعا ده
هغه فنا ده ، هغه فنا ده
سره خپل نشته ، که شته دیار دی
حادث قدیم شو ، حاصل بقا ده



ټول رو ښان اوسه ، دخدای له یاده
تیاره را مه شه درله ، ښاده
یو ګور ه وینه ، و ښیه ما ته
زما د زړه ګی « رڼا ابا ده »



بیادر له راغلم دخر ما و نې
چه د ې مې ما اې د زړه ګی ستنې
ډېر یاران تللی د ګور په لور دی
ته لاژوندی یې فردوس لمنې



زه که ژوندی یم ، له مړو بتر یم
د حواد ثو نه کور و کړیم
و ښته مې سپین کړل ډېرو غمو نو
تور مې کمپرې اوس بې نظر یم

کمپنی باغ پېښور -۱۹-۹-۵۳

# الله او محمد

دریم حرف یې د نوم و نو مشدد شو

هر یو اسم بې مثال او مجرد شو

چه دې دواړو ته نظر کړم لا شریک دی

بې نقطې د ی یو الله بل محمد شو

✲ ✲ ✲

د غفلت د شپې او دو ته خبر راغی

را بیدار شی ه نور شیندونکی سحر راغی

اوس دعوې د ځان ځانی د رڼا چیر ته

غریب نیولی ستوری آت شول چه لمر راغی

✲ ✲ ✲

شوق مې سر کاندی اوچت په زړه به څه وی

وایی زړه چه به د شعر لیکل بنه وی

خو چه فکر کړم بنه شی یې را ته ګران شی

شوق هم هله کوی لمسه چه څه نه وی

✲ ✲ ✲

ټول عمری جفا د ښکلی یار احسان وړم

سرمایه د ژوند د ځان سره ارمان وړم

وفا بار په زړه د مینی، مینه ځان دی

په سفر کښې وایه بار وړمه که ځان وړم

---

(۱) له دې ځای نه و روسته شعر و نه د قافیې د جوړښت له حیثه په رباعی ګانو کښې راځی ، مګر د وزن له مخه له قطعې سره نژدې دی .

سید نه دی چه یې صافه سینه نه وی
په سید کښې حسد بغض کینه نه دی
چه په یوه لپه کښې ډوب شی څه یې ظرف دی
په یو ګوټ چه خالی کېږی چینه نه وی

## عشق

ته لیونتوب او که جمود او که طاقت راولې
ته که وحشت او ولولې او حرکت راولې
هر څه چه وی خوځان ځانې دې له ما حوله درومی
ته په خپرو ور واجرا کښې وحدت راولې



ستاد زلفو کور دعقل اوخرد کړ زما خپور
بې حاله یم چه پړی راته هم ښکاری منګور
تېرې زما دزړه کړې لرې توری ستاد هینې
رښتیادی چه رغیږی تل داو رسوی په اور



دوروستنی پهر په کیف کښې دامستی دچا ده
دچرګک په بانګک کښې دابد له الستی ده دچا
په زړه دشپه کښې جلالت دچاجمال کړو پیدا
مخ دسحر ړک له خندا پکښې هستی ده دچا



دبدی نه مه ویرېږه ، ښه به اوری چه ښه وایی
وزبان ته یې را اړېږده هر هغه چه په زړه وایی
دنیکی بدل نیکی ده ، دبدی بدل بدی ده
هم هغه به بیا ته اوری په ګنبد کښې چه څه وایی

طايفه د شاعرانو که وي ستا په خيال کښې ګرمه
داسې بوله په خپل زړه کښې په خوله کړه خبره سمه
که دولتلرې قارون يې زه له تا يم بې نيازه
نه ته زيات يې د سړي نه، نه زه کم يم له آدمه



ننمې باردزړه نه کوز شو، چه ستا نوم زما په لب دی
چه مقام د مينې وران شو اوس په سر کله ادب دی
لکه نورو ته يې کاندې، ما ته هم مخاطبه کړه
ګڼې سر به هغه نور شي چه د دې نه ثه مطلب دی



زړه مطمئن کړې د صفاتو مينه ذات وي پکښې
د ذات په مينه منتشر شي زړه صفات وي پکښې
زړه هغه ښه وي چه بدي هم حساب وي پکښې
جهان هغه دی، چه کعبه هم سومنات وي پکښې



پسرلى مې د زړه ګوټې په ورشو راغلى ؤ
يو د اسې ګل خبر دې در اتلو راغلى ؤ
مقصد خوېې ديدن ؤ استقبال يې شو بهانه
زړګى مې دروازې ته د ليمو راغلى ؤ



اى دريغه که طاقت مې د ادراك پاتې کېدى
بيا ستاد ننداره به زما واك پاتې کېدى
ښايسته يو ديدن به دې هم تل ؤ ما ته بس
ليکن زما نظر که په دې پاك پاتې کېدى

زور دمینې ګوره چه زما شو لې ستا ستر ګې
اوس په هر یو مخ کښې را ته ښکاری زما ستر ګې
تا چه را ښو دلې وې هم داد وه دهر چا وې
تا چه را نه پټې کړې اوس چېر ته دچا ستر ګې



نه خو ر مه چغلی ز ه آ ینه یم بې ر یا یم
ځوك چه مخامخ را ته کوم څیز کړی هغه وایم
هیڅ منا سب نه د ی ښکلیه یاره چه دې ستایم
هغه به دې ستایې چې ستا نه وی ، زه خو ستایم



څه شی که سبب دې د غرور ښکلی ځوا نی ده
و ا ور ه بې نیا زه د و ختو نـو ر و ا نی د ه
څو کړ ته خپله مـد عا شو ه ر ا تـه یـا د ه
هېره شوه چه نن دې د خبرو او زا نـې د ه



مېوه چه شی پخه نه شی ویشتی شجر په ګټو
کچه چه وی را پر پوزی له شجر ثمر په ګټو
ولې دمحبت کړ ی ، دښا یست ولې ښېر ا ز ې
هجر ا نه و لې ، و لې د و صا ل شجر پـه ګټو



ورك له خپل جهان یې ، خپل جهان ته راوا پس شـه
ورك مه شه نظر خپل چشمان ته را و ا پس شـه
« ته » به هله « ته » شې چه داو وایې چه « زه » یم
هر څه هم په تا کښې دی ، خو ځان ته راوا پس شه

ته یې د آزادو الوتو نه ، را ایسار کړې
ستر ګو لره جوړې چه ګولۍ د رته اغیار کړي
ای د اسلام بازه، په پردې منګله ناسته
خپل ملت دې هېر کړو، د پردو د پاره ښکار کړې



مړه کړه د مرګ وېره، چه د نیا دې راژوندۍ شي
سوی د عشق په کار دی، چه دې وینه ګړندۍ شي
لږ په څه تدبیر په دام کښې نښتیه مه پرېږده
ستا په اضطراب سره به لا کلکه زندۍ شي



نه پوهېږم ارمانونه مې زاړه شوه که ځلمي دي
ستا د تنګ سره لاړه نه شول، عقلمند که لېونی دی
آینه د محبت یم را ته ولې حیرانېږې
دا چه څه په ما کښې ښکاري، زما خپل نه دي پردي دي



وکړو ، یو تپوس مې د ښکلانه وایه څه یې
وې چه ما له ځانه چه جدا ګڼې لا ته یې
ستا د اتصور رمې رسوی که خطا باسې
چاوته چه ډ ګو رمه وایم ته خو نه یې



د نیا زه مې پوره ګیله به څه کړې
پیش کشی کښې حورې ته حوره به څه کړې
ښکلې لاس دې د جوهر مقابل مشه
واخله زه پخپله مرم توره به څه کړې

خدای ور کړی ور ته هسې رنګ جمال ؤ
چه جمال لره کمال ددهٔ کمال ؤ
ای حمزه! سودا جنون د وصل خیال دی
چه خپل سوری پې حسرت کښې دوصال ؤ



دادب او انکسار په غرو ندو
یم تړلی پاتی زه له خندیدو
ماکه ځان لیدی، خپل قدر به مې وکړ
آینه یم په بازار کښې د ړندو



محشرو نه دی، زمادزړه خانه کښې
لکه پټ چه ګلستان وی په دانه کښې
چه په ستر ګو د وحدت یې ګورم نشته
هر څه وی، خونه وی، هیڅ په آینه کښې



داغ دې مشه بدنامی په خپل تندی
چه وعده و کا نیکان، پرې سر بندی
هم په دې دی دانسان اوحیوان فرق
یو په ژبه د بل تړ په غړو ندی



په کو نجکه نه ارز پیری فریادونه
زه کامل شوم، خوورك نه شوزړه چاودونه
هیڅ حاصل نه کړی په دودو کښې بادونه
بس خودا چه سر و هل دوړی ګردونه

تمدن کښې يو په بل شته بلو سېده
دهر څيز عکس العمل شي رسېده
لاحاصله بلوسېده پر يږده شينواريه
که دې خوښ وی په نړی کښې اوسېده



د کبر لېچ په ژ بـه چپر ته سمېده
د زيادت لېمه نه ګوري کمېده
که کاته دی که وايه دمرګ پيغام دی
دادژوند لکه د بوی دی رمېده



علم څه دی ؟ د حواسو لړزېده
يا دورځې لاحاصله ګرزېده
يا طلب چه کړی په شپه خوری تيندګونه
جهل څه دی د حواسو لغزېده



په خاموشی جهان دزړه کښې مې ګډ شور کړه
داخوږ لن زما دعشق لمبه جن اور کړه
چه پسرلی پيغمبر لی ګلونه راوړل
شپې نوې کړه پيدا خالونه نور کړه



ده بها په کاسيره که وی امیره
خدای دې نه کړی مجبوبه دچا کاسيره
که آزاده لکه سرود چمن وی
دبدیه په زولنو کښې وی اسیره

د پسرلی لمدې لمدې بې هوښه شپې
مستې مستې دی له پره جوشه شپې
رنګینی په مخ د پېغلو پلو شو ده
ای ساقی په داسې وخت بې نوشه شپې



د نسبت تومنې دژوندشوده ماسته کړل
د پښتو نه مندانو دعشق پاسته کړل
کوچ بهر شول یو ک له خوندہ ترې دو صل
کلک هلو نه د هجران یې چه وراسته کړل



چه ملنګری ځنې ونه اندې وی خپا ره
مشې ګیر چه مخکښې راشی ځلیا ره
که وی وپرخو منزل په یوا که نه وی
فکر مه کړه داو بوده او د سا ره



چه وی ثیك دیو نه پېر دوستان نه دی
چه یو وینی ای که دوه دې چشمان نه دی
چه خلاف له شرعی نه وی رواج نه دی
یوه لار چه نه یی دوه رهبران نه دی



ځوك چه نه وی اموخته د شرك وذنب
وپره نه کړی د ببر زمری له غږ مب
زړه چه و نه چوی د چاهمت پکښې وی
د شکست وپره یې نشته دی له بمب

په میدان د بې کوری کښې ور شه کور کړه
دزړه ستر ګې دې د بې ننبان په لور کړه
که همت د شها دت در خخه نه وی
ای شیدا ریه د منصور غنی پور کړه



دوه وختونه دی د شیدا رو دخواری
یو دې وخت د هلك توپ بل د پیری
د سحر اوماز یکر وختونه کوره
تله راتله یکښې له کار او مزدوری



زه چه ستا په مستی مستیم مستی دادده
زه چه ستا په هستی هستیم هستی داده
ته چه خومره اوچت شه یې، زه ټیټ شه یم
در فعت نه چه حا صل شی پستی داده



خه په ګرانه ؤ را غلی ، اسان لاړ
اخر لاړو شهلا ستر ګې جانان لاړ
په خند اد سبا یی می له بستره
وینې دشپې لکه د سرو روان لاړ



چه زما په حق دیا رشوه وفا بده
اوس په کومه خوله به وایم جفا بده
زه خو بد من دمینی پند مه کړه واعظه
په لیچنو ستر ګو لګی و نا بده

زړه مې بې څه دی خفه رضا کوم
او که شپه د بېلتانه سبا کوم
بې نیازی دنیا یسته ؤ سره ښا یې
مرور تللی ارمان پخلا کوم



چه احساس په هر انسان کښې د قبول دی
بس تکمیل د سړی توب ته دا اصول دی
د فطرت په لاره تلل انسانیت دی
د شهوت په لاره تلل د زړه نول دی



ګناه څه ده ؟ لغزیده د سړیتوب
نیکی څه ده د فطرت په غېږ کښې خوب
عقل څه ؟ یوه رڼا ده لېږ زیدونکی
مینه څه ده د سپېدلو لېونتوب



بې خودی که دخدا د پاره غواړې
ژوند د تن به د بقا د پاره غواړې
د خودی په ورکولو کښې سود نشته
ته چه ورکشې خدای دچا د پاره غواړې



حمزه خیر دی که نن قدر زما نشته
ولې وینه وایی دا چه سبا نشته
کومه شپه چه په بازار کښې شمع نه وی
خلق وایی چه نن ولې رڼا نشته

کمپنی باغ کښې دخرما دونې (۱) لاندې
جال د سوری ښکاري خپور په ښېنکې باندې
په تیاره رڼا کښې ګېره آدم ذا تـه
ستوري ستا په بې نوریه له پاسه خاندی



په نـن شپه د ننه ږ ږ مې بهار ی د ی
د پسرلی نسیم خپور شوی خو ماری د ی
زه سګرټ څښم د خر ما د و نې لا ندې
چه لوګي مې له خولې وځي عنبری د ی



که د و نـې حقیقت غو ا ړې د ا نه د ه
ا و د ا نـه بیا د تخمو نو خز ا نـه ده
پـه زره کښې شته دی را ز د کا ئنا تـو
نه هغه شته د ی ، نه داشته بها نه د ه



د ا بشر د ی د خوا جه که یې نقاب دی
لا مېوزنه دادریاب دی که سر ا ب د ی
ته مغروریې چه حجاب دې کړلو پورته
خو حجاب پورته کول هم یو حجاب دی



پر ده د ر مې شول دا وښکو با را نو نه
بې ګو هر و شو ل لنډ پاری ارما نو نه
ا ی ز ماد خـو ږ ې مینې خـو ږ او ر ه
و هی سېلاب د بې صبرۍ دې ساما نو نه

---

(۱) د پېښور د کمپنۍ باغ د خرما د ونې یاد .

ټو له شپه چه د ر ته ز ه په ا نتظا ر یـم
ګو ر ه څر نګه غا فل یم که بېد ا ر یم
شر ا بی سټر ګې د ې و ا ړ و ه ز ما نه
و شوه بس دی ښېوه ګر ې تو به ګا ر یم



زړه ز ما غوا ړی ژ وند ون دچا دپاره
ما قبو ل کړو، د ا جنون د چا د پا ر ه
په اسمان مې دزړه څوك دیمسکی شوی
غر یب مې سر کړو په زنګون دچاد پاره



خیال ځلمی شو، حال ځلمی شو، قال ځلمی شو
د فطر ت ساده ما شوم جمال ځلمی شو
هر یو شی دځلمی توب په مېو مست دی
پسر لی جنجو نه را غلمه کال ځلمی شو



په خپل قو ل کښې صا د ق او په ز ړه ر ا ست یم
دا خلاص له غوړو ړوك یم هغه ما ست یم
دبې « لنګې » کـور په څېر دمندا ڼـویم
هېڅوك نه رانژدې کېږی ځان ته ناست یم



کله ګورم چه فطرت زما کنجوس دی
نا ممکن دی تر ې حصول «سیاهی چوس» دی
کله پاتې شی تنګ تو ر د معانی نه
کله کله دا سر ار و جو ړ قا موس دی

# عشق ته

ستا په لمن کښې د قامونو تقدیرونه دي پټ
ستا په تندي کښې بو ګنبدلي قسمتونه دي پټ

ستا په ګکو کښې شبستان د خوشحالۍ وینمه
عشقه په اوښکو کښې دي ځلند رفعتونه دي پټ



نوی کهول د یاره لار جوړول غواړي
ملیت سره دین هم ګډول غواړي

کړونده داور په کار ده ادیبانو
ولې څه اور اور کې پکښې کرل غواړي

# بې نواته

څو که پاس لکه لوګی زه په سحا یم
بې ښکالو، روان په لوري د فنا یم

ستا دژوند شمع دې خدای لری روښانه
خیر دی زه که په تېرو کښې بې نوا یم

لواړګی ـ۱۵ـ۸ـ ۵٤

# قربانی

دانسان انسانیت ، د قربانی نه
په مخلوق یې حکومت ، د قربانی نه
دضمیر دژوند نبضونه په دې چلی
رڼا و اخسته ، فطرت دقربانی نه

# خوازه یادونه

چه وو ژوند ، هغه نازونه لټوم
خپل نیمګړی ، نیازونه لټوم
بې نوا ستر ګې مې ستا په لور څلور شوې
ستا په ستر ګو کښې رازونه لټوم



په ژړا در پسې شنې شوې دزړه شاړې
په خندا دې کړې دزړه دافق غاړې
ستا پیکر ؤ د نا سوت دقا لب ستر
پسته و پېژندې خلقو، چه تـه لاړې

# خوشحال اوملت

د پښتو ادب جمال راژوندی کیږی
دیو کال نه په بل کال راژوندی کیږی
داژوندون د پښتانه ، نه دی نوځه دی
چه هر کال پکښې خوشحال راژوندی کیږی

انګور وپالي چه باغ ته ورسیږي
مې په کار شي چه اياغ ته ورسیږي
نن پښتو کړه خپل مقصد طالب العلمه
اجزاء ګل شي چه دماغ ته ورسیږي



بيا په خندا خندا کښې ژاړې ګله
چه د شبنم نه وفا غواړې ګله
درته نسيم په غوږ کښې څه وويل
چه د خندا نه په شا لاړې ګله

پېښور -۲۲-۳-۵۸



ستا چه نظر وی بې نظر خو بس یم
بس په خبر کښې، بې خبر خو بس یم
ستا په دیدن کښې یو جهان پټ ؤ
اوس په دیدن دهر بشر خو بس یم



د دنيا په چول يې زه پښې ابلې پښې کړم
د منزل نه پيا تې خشکې فلسفې کړم
ستا مثال په تتېد ودی اوس به ګل شي
عقله لري شه چه مينې ته نارې کړم

# قلم

نن چه فاروق را ته قلم را کړ
نوې يې ساه، نوی يې دم را کړ
د آينې نه يې قربان شم دزړه
ما ته ګويا يې جام دجم را کړ

روګردان له عشقه ، عقله ستا په پل شوم
د تحقیق لار مې خطا کړه په اټکل شوم
با معنی و م چه فطرت بیـا نو لـم
چه خواهش زما ګردان وکړ مهمل شوم

## شیخ ته

ماوې شیخه ستا نیمګړې وظیفه ده
یا څه زرد میخا نی بله ۶ یـو ه ده
صراحی پیالې ته څه ویل پوهېږې
وې د نیـا خـو مسلسله قهـقه د ه

✿ ✿ ✿

بلبل دلته اور پدی نه شی د ګل غږ
د یخنۍ نه مو ره شو ی د بلبل غږ
خو کوم غږ چه مجردوی اور پده شی
په کالام (۱) کښې اور پده شی د کا بل غږ

## سترګې

ماوته مسکې چه د تا سترګې دی
بس نو د تا سترګې زما سترګې دی
ما ته هر یو شی د نړۍ سترګې کا
څنګه دې دوه سترګې بلا سترګې دی

✿ ✿ ✿

راو ببن شه څوانه اکتساب وکړه
له کل جهانه اکتسا ب وکړ ه
و لې بنیا د د ر تـه د عـلم شیم
له خپله ځا نه اکتسا ب وکړ ه

(۱) په سوات کښی یو ځای دی •

سو زه خند یږه خو رڼا وکړه
ددې تپر وخو څه د وا وکړه
لکه دشمعې په خندا خندا کښې
پخپل ماحول باندې ژړا وکړه



ته له رحمانه عشق وحال وا خله
زنګ اومېړانه له خوشحال واخله
تـه چه وا رث یې د مـلت ځلمیه
هم یې جمال هم یم جلال واخله



اوس د چا د خوب نظر نه ، نه شرمیږی
چه ساده دی نومطلب ته نه رسیږی
چه ځوانی راشی خپل سیوری ته به ځیروی
چه ماشوموی دخپل سیوری نه وېرېږی



که دزړه سترګی لرې ، نوړوند به نه شې
ته پر پښا ن د بېلتا نه په دوند به نه شې
دعشق بار پور ته کول عین را حت د ی
که خپل سر په تن لرې ، نودروند به نه شی



بګواس خوشې خبرې هم به لافې کړې دا یمه
تش و ګڼه کم ظرفه لکه ډ و ل کو ی صـد ا
صفت یې تـلون دی ، عا ری شوې له سکونه
سپک څیز پـه حرکت کښې را ولـی لبږه هوا

احمق معلوم ول ،خود احمق سړی کار نه دی
یو ړوند لره مشکل وی، چه بل وپېژنی ړوند
دسپکو سره نه وی برابر ، د در نو تول
د دروند مواز نه خو همیشه کیږی په دروند



افسوس دی، په سرخیو اوسفیدو یې کړی بې خونده
دد ې زما نسې ښځې غنم رنګ نمکی مخ
فېشن داسې بلا ده فطرتی حسن یې ورك کړ
پالنه به کړی څه؟ چه شی ملیار دچمن پنې (پخ)



بی ځایه وی دکور لوښی، چه ښځه وی پوهړه
زړوره شی څیز ونه دخو راك ترېنه وړی مږه
دخپل فصل پالنه ، چه کوم یو زمیندار نه کا
میلمه وی پری د شپې ورځی خوارك نیستی او لوږه



په سیند کښې مرجونا وهی غوپې چه غواړی در
کوشش دې چه شعار شی ،مرتبه به دې شی جګه
وجدان دې چه کامل شی، صحیح حس به دې پیداشی
په شپه کښې عجب نه ده که په بلوه نیسی ورګه



خندا خو دژړا نه پیدا کیږی ،داو یل شی
د بلار بې غلامی ځنې زیږیږی حریت
تپوس دګناه مړ کړه ،د نیکی بازارې پیدا کړه
دنیا کښې دعمل نه د دوزخ وا خله جنت

جا هل دجهالت څخه، عالم له علمیته
هردم هره لحظه کښې به راوباسي نندرت
منزل کښې ځنګ په ځنګ دی ترقی کښې شه اوبد
دهر یوه مجاز سره لازم وی حقیقت



تاثیر وی په صحبت کښې هیڅ په دې کښې نشته شك
چه مل دخر بوزی شی خر بوزه ترې اخلی رنګ
بیان به یې زه څه کړمه آفت دکار ولو
په تشو یادو لو هم نشه راولی بنګ



که تو ریمه نو څه شی، په او صافو مې نظر کړه
بوراوی تل په ګل کښې په سینو پراته لو نګ
کړی منبك دې زلفې زلفې اورانجه دې ستر ګې ستر ګې
خالونه په شاهانو بانـدې ستالـری قلنګ



خوبونه وی خوابه او ترخونه وی ترخه
دسولې نه وی سوله او دجنګ څخه وی جنګ
عاشق معشوقه یودی خو نسبت کښې غیر ښکاری
بې رنګه نه بې رنګه او درنګه نه وی رنګ



غوغا کړی پیغورونه په اخر کښې ورته ژاړی
وسلې دی چه سړی یې از میږی چه خپله ښځه
ګړی ساعت شه چپ له استقلاله دابه چپ شی
نینه که شی دبې بهر له خپل اصو له مه ځه

سالك په جوش دعشق کښې له هر څه وی بې خبر
په خودشی خو چه سد يې شی د لارې ما نعا ت
پتنګ په جوش کښې هيڅ نه وی خبر شمعې ته ګوری
پروازدعشق دجوش يې په ښېښه کا ندی سرمات



هر چالره صادق دوست چه پيداشی په دنيا کښې
خوشحال يې په صحبت اوسی هر څو که دی خفه وی
حمزه دخوږ اشنا به درته څه وصف بيا ن کا
چه ګوره څوك له هرې ږدې وخکی خوږه وی



په هر خوار و غريب مه کړه ګومان دکمينه
مچان که وی همه نه وی هر يو د شا تو مچ
صحبت د عـا شقا نـو و ی بـا عـث د منفعت
شو ده په شړومبو تومنه شی حاصل شی تر پنه کوچ



عمل بې شکه ښه دی ، خوموقع او محل غواړی
کتی نه شی کشمير که مېړی وخېژی په پچه
غصه به ضبط نه کا ندی کم ظر فـه کم همته
په باد دپشه کاُل دچا خوه له به نه شی و چه



هم عقل کړی دعشق په هدايت ، هدايت عشق ته
تل پند کوی دشاه په اجا زه شا ه ته و زير
دا نشته دی امکا ن و آ ينی لره هيڅېر ې
چه پېش څه بې پر تو ه در ڼا کا ندی نظير

لا لېچ حرص و هوا باسی سړی، له سړ یتو به
بې صبر و بې حیا او په نېستي به وی ککړ
هر څو که دیو بل کړی خوشامد څه به و نه شي
مشهور دی داهتل چه نه هضمېږی دسپی غوړ



خو دی ابشکلې شوې، په فطرت کښې دانسان ده
څوك وایی چه سېلاب کښې دبکرې نه اور لاړ
تا دیب او سر ز نش په بد فطر ته اثر نه کا
بدی به ترې نه یوسی که زر ځله ور کړې جاړ



خوشحال وی چه بند ناست په خپله خونه وی کوټه کښې
چه قیدیې کړې دوه ورځې ځلمی تیار په جنګ شي
کا لو نه که فراق وی دا شنا خو پروانه وی
وصلت ته منتظر چه وی، دوه ورځې سړی تنګ شي



تصویر دپاسه جوړ چه شي تصویر هغه خراب شي
دماغ داسې کمره ده چه هر څه پکښې موجود وی
حمزه که هزار ځله اشنا و وینې په ستر ګو
خو اهش دتصور چه وکا نقش یې نا بود وی



قلم مې را بهر کړ ر باعی چه ما لیکله
ناڅاپه تور هندومې په نخرو په مخکښې تېر شو
بندش مې داسې وو وت له دماغه چه جوړ نه ؤ
راغلې راته بیه یو نوی خیال ؤ رانه هېر شو

په خندګ به ګرزېده، ما ته يې نه کړو التفات
زه خان د پښتنو، هغه هند وه تکه توره
ما ځان کړو بې پروا، خويوه ورغ په خندا راغله
زه هم شوم په خندا، بې نيازي مې نه وه نوره



خواهش او طلب پر پرېږده د دنيا - د نيا به راشي
په زور او په کړ او به رو ښان نه شي، د بخت ستوري
چه لمر ته مخامخ شي، نو وي سوري به دې شاته
چه شا کړې ورته مخ نو مخکښې ځي به در نه سوري



اګر په تو رو زړ ونو، د نېکا نو د صحبت ځه
که او سپنه او بو کښې شي ګوزار، نو اخلي زنګ
په کاڼي باندې جو که لګول عبث خيا ل دی
هر ګز د بې رنګۍ نه پيدا شو ی نه دی رنګ



اګر به د بد کا رو د صحبت په ما و نه شي
مثل دی چه لعل و نه په ايرو کښې نه پټېږی
خواهش حرص و هوا کړی په هغو اګر چه سپک وی
چه په که د سپلی و ی خو ر ښا نه زا يلېږ ی



ګرمي وی که يخني وی، خوخوك نه پر پرېږدی ملګری
که قيد وی خو چه خلاص شي ځي ملګرو ته مارغان
غمو نه د نيمګړې د نيا ځ پر د ی، ای فا ر وقه !
سحر و ختی را ځه مو نږ ه ميلې تـه يـو ر و ا ن

پښتو نه مسلما نه دمغرب په رنګک کښې رنګه
تهذیب دې مغربي، شو ذهنیت دې بدل نه شو
کارغه چه اختیار د زر ګې تله کړل خپل یې هم ورشول
تابع شوې دمغرب ولې غربت دې بدل نه شو

✿ ✿ ✿

پښتو نه زه حیران یمه پیدا په څه فطرت یې
شا مله د رسره وینم د عمر بـد حـا لی
ژړا دې شوه عادت، زړه دې خالي نه شو له غمه
غا یبه شي ور یخ، چه له بارانه شي خالي

✿ ✿ ✿

له ښاره ماسپښین لاړو پائیندی للمې ته وروره!
رښتیا ده، وی شاعر په حقیقت کښې سودایي
ګرمي وه باسولي خاصه دار شنې چایې پخې کړې
پرې نبه مو طبیعت شو په کار پری اشنایي

پائیندی للمه ـ ۲۳ر۸ر۳۹

✿ ✿ ✿

واړه لوی ملا ګوري، دي یکتا په ظرافت کښې
دیونه مې تپوس کړو، په ګرمۍ دې څه حالونه
هلك شو په خندا، دمدرسې جواب یې را کړ
ګرمي خو ډېره نشته، خو په شپه نه شي خوبونه

✿ ✿ ✿

په څابښت کښې چه رسید شو، لوړې مینې ته مو نږ واړه
معلومه شوه د اخلق د ی یکتا په سخاوت
مجنون هلك دکلي تر خوا مو نږ چه تېر ید لو
خاوند یې لا په کور کښې ؤ چه سپي یې وکړو ست

لوهه مینه ـ ۲٤ر۹ر۳۹

شهید مېنه که کنده د دوزخ ده نه پو هېږم
ګرمي ده پکښې قیده وبه ګوري که څوک راشي
ګرمي په زوره زوره چه ساه اخلي له دهشته
جنون پرې راشي چك په اندامو نو وهي میاشي
شهید مېنه ـ ۵ ۲ر۹ر۱۹۳۹



وړه غونډۍ دره د کم شلمان ده مالید لې
حساب یې که کړي خلق پکښې اوسي یوه لپه
سړو نه یې مچۍ دشا تو نه شي خلا صېدلی
اوسېږي یې رسوی سړی ته ځان اول له غپه
کم شلمان ـ ۲۶ر ۹ر۳۹



ګو ګل کښې مې چه اور دعا شقۍ بلېږي شپه ورځ
رښتیا دي چه په عشق کښې اندېښنې راپیدا کېږي
واعظه که هر څو کوي پند و نه اثر نه کا
تنور چه چېر ته تو دشي نو ډوډۍ پکښې پخښېږي

❁ ❁ ❁

راحت دسترې تن لره مفیده بې خودي وي
دعمر بې خودي، خوده په مرګ باندې حساب
یخنۍ کښې وا خلي ساه، ډغرې نه خوري په قرار شي
توفان لره ګرمي جوړې حیات شي ددر یاب

❁ ❁ ❁

دقرض اخستل ـ خو ډېر اسان دي چه ښکار یږي
بیا پسته ډېر مشکل یې شي، سړي ته خلاصول
عادت دهر یو کار خو پیدا کېږي په اسانه
خو بیا یې وي له ځانه ـ نا ممکن جدا کول

دیو ی سړی معلومه کمزور ی ـ چه‌وی بل چا ته
تېر یږي تر ې په خـندګ، نـه کوی یون دده په لور
صحبت د چا که خو ښ نه وی د تا، چپ له حیا یې
اسان یې دی علا ج ور ته یو ځله ور کړه پـو ر ه



خوا هش مې پخوا نی ؤ ـ چه‌ا شنا را شی دید ن ته
چه‌را غی ، نو په دا سې ر نـګک چه استغفر ا لله
زړه بو کره په‌سر له نا تو انی، امسا په‌لاس کښې
چه‌مخ مې یې بر ښئله کړ، نووه لو ږه معا ذا لله



دلوږې باد شاهی ده، صبر ؤ شکر تښتېد لی
تر غو ږ و د حـمز ه د پر ا ڼـو د ی ټپها ر
په‌چغو چغو وا یی اشتها چه ز ر شه پـا څه
یو چا ته ژړا وکـړه کـه پر ې څه وشی ا ثر



خو بیا مې د ژ و ر و د ضمیر نـه یو ا و ا ز
را پور ته شو چه پام کوه انسا نه مسلمان یې
مټل دی چه‌خو له ما ته یا په‌مر ګک او یا په‌سو ال شی
خوا هش په‌لته ووهه مړ دی وکړ ه ا فغان یې



سپرلی په کمپنی باغ کښې، دخرما دونې لاندې
بلبل را ته ناري کړې ـ چه‌دا ژوند خو یو نفس دی
دانا وې د فطر ت، خزان بها ر لر ی په مخ کښې
را تله دی تېر ېده دی دا او از د هر جر س د ی

ر و ز ی پید ا کوم دز ړ ه د ما غ په مشقت
په شتو کښې هم بې شتو یم چه ښه و کړم شاعر ی
تباه مې شو صحت خوآمدن مې و ا فر نه شو
بدل را ته حاصل دد ې خد مت شو ه لاغر ی

❋ ❋ ❋

خوك هغه‌دی روزی چه‌لکه وینځه ور پسې و ی
خو ك هغه په ر و ز ی ه پسې تږ لې یې و ی ملا
دا چك دروپو شلو- په‌دود وروا ن یم بېنك ته
او قر ض دی په ما با ند ې - دد پر شو نه سو ا
پېښور - ۹ر۳ر۴۰

❋ ❋ ❋

روزی زماده مخکښې - اوزه ور وسته ور پسې یم
متل د ی چه ر.وز ی خو د پـلا نکی ده پـه هوا
همدا ګناه مې بس ده، چه شا عر یم پید ا شو ی
که‌وینې یم که او د ه ، د ر یلې یو مې و ی سو د ا
۹ر۳ر۴۰

❋ ❋ ❋

ما ډېر ډېر فریاد ونه ډك له‌سوزه ور تـه وکړل
زړه یخ ، بې مر و ته د یار نه شو تر ا ر ه کښې
په‌زور که‌شی ګرمی، دپشه‌کال خووی محفوظه
عاقله هغه واو ره چه پر ته وی په ځا ره کښې

❋ ❋ ❋

بېګامې دخپل زوی نه دسبق وکړ ه پو ښتنه
چه‌نه ورته غصه شوم، ډېر مې و و هلو ورا ن
بیا پسته چه‌خفه‌وم تسلی مې ور کړ ه زړ ه ته
هر خوك په‌غم، غصه کښې ګوزارو نه کړی په ځان

ګرمی ورو ورو زیاتیږی او کمیږی هم ورو ورو
یو دم که اوړی ژمی و ی نو خلق به و، مړ
ورو ورو چه سړی دوست کړ ي تر ې یو دم مه جدا کیږه
قانون باندې روان شه د فطرت چه نه شې پړ



د عوی د علمیت مې نه د ه کړ ې معتر ضه
د ماغ مې سلامت په خرافاتو نه دی ډ ډ
شاعر یمه زما د علمیت سره څه کار د ی ؟
خوراك دی زما مغز، کار مې نشته دی په هلو



خواری او غریبۍ کښې، یار اشنا له سړ ی تښتی
مرض د یم و لګی په چا و پښتنه یې ر پږ ی
پیدا کړه خودی ځان کښې بې خودۍ کښې د ې څه سوددی
خبر شه په پیچو م دز ور ورو او به خپږ ی



چه ولګیږی داغ د غلامۍ نه زائیلیږی
عادت دویم فطرت دی باغ د طبعې کړ ی راغه
نوکر چه پخوانی وی، د بادار له ظلمه نه ځی
پنجره کښې اموخته چه شی، بیا نه تښتی مارغه

ګو ښه کښې مې د زړه پېما نه ستر ګې اشنا او سی
رندا نو په محر اب کښې د کعبې سا قی ولاړ دی
مولا چه دی کریم ، نو ښه نعمت يې هم کریم کړ
راځی ۶ چه نوش کو و بغیر له دې جهان و یجاړ دی



بد چه کوې مه ځه چه دې بد به بدر ګه شی
هر چېر ته چه خوك ځی خپل عمل ور سره ګر ځی
ځا ن و سا ته بچ دې د بـد ا نو له صحبته
خوك چه د بد انو سر ه ګر ځی بد به پر ځی



# په خوب کښې

ماوې چه جوړې ویده قام به زما په چغو ویښ شی
معلومه شوه ماغبرګړې خوبولو ته په خوب کښې

نوحه د مفلسۍ ده چه مې او ښکې سا تی و یښې
جوړنه شومه په عمرهم بد لو ته په خوب کښې

غفلت یې داسې یار دی چه یې ستایی په ر ټنه
اشنا ته لکه څوک ورشی ښکنځلو ته په خوب کښې

ماشوم دایشیا به ، دیو رپ نه څه از اد شی
ورکړې یې ګوډۍ ده، لوبو لو ته په خوب کښې

چه ټوله ورځ مې ستا په غم کښې وینې وې ژړلې
بېدار وم مرغلرو، تو یو لو ته په خوب کښې

(۱) دا شعر هم پاڼه کی دی .

# رمضان

راشه پښتو نه چه دې زه دژوند په راز پوی کړم
بې وینو غوښو ، نور څه ولې رمضان نه خوری
درخصتۍ په شپه مې وکړو، دا تپوس ور څخې
څوک چه انسان و دا نوی ، هغه انسان نه خوری
وی چه رښتیا دی خو مسلم ته یو سبق ور کوم
هغو به تل د بل خوراک وی چه خپل ځان نه خوری



صادق دعشق هغه ګڼم چه اوښکې تو یوی
الفت چېرې تر اوه په خپل محل کښې نه پرېږدی
اوس وار دځګر خون کړه، هره اوښکه بې بها
دادرمې «مرجو ڼادغم» په تل کښې نه پرېږدی



## ۱۱۷ شالامار

سيلاب د پاغوندو ؤ، که ا بشار په شالامار کښې
جو ړ اوښکې د سليم (۱) دی چه بهيږی لا تر اوسه
چه تېره بادشاهی شی بيا يې نښې پاتې کېږی
حمزه دې ننداره وته دعبرت په سترګه ګسه

✲ ✲ ✲

سترګې ړ کې شوې له خوبه، ړ ړوه هم په ر پېدو شوه
جو ړ لمر مخی اشنا راغې، که نسيم دسحر نه وی
چه د چا حسن نصيب شی، ځوانی تېره شي عبثه
دوامره محووی په ځان کښې، چه له ځانه خبر نه وی

✲ ✲ ✲

هيڅ شک نشته په دې کښې، چه رڼه وی په عشق کښې
خو ښکاری پـه مثال ور ته د ګلو، د غه و نـې
هر څوکه ګلستا ن دی، خو د غنو نه هم ډک دی
بې د ښه عقل څه کړی، چه دې خلاص کړی له رڼې

✲ ✲ ✲

زه خپل ځان هم نه وينمه، تا به څنګه وو ينمه
ته يو بېل غوندې جميل يې، کړې پرده د آينې نه
حسن دومره بې پر دې شو، چه ممکن ور ته کتل شی
عشقه دومره مضطر مه شه، چه بهر شې د سينې نه

✲ ✲ ✲

شو ه نن ما ته معلومه چه وی ژوند په اعتد ال کښې
نه تل په بيا با ن نه تـل ا ستو ګنه ښه په بـا غ
که شور دحد نه زياتوی، هم کمزوری پر ې دماغ شی
په ډېره خامو شی، کښې هم کمز وری شی د ماغ

---

(۱) جها ن ګير مغلی پاچا ·

# وېش

راځي د زما ملګر يو، دا دنيا به سره وېشو
دنيا خو تماشه ده، تماشا بـه سره وېشو

حيران يم چه دروغ به چا ته پاتې شي وو ايي
انکار خو زما نشته چه رښتيا به سره وېشو

حاصل که د دنيا يست سرمايه نه شي زېږېدی ګړۍ دې پر دی
هغه که په لاس را نه شي، نود ابه سره وېشو



سپرلی په دې پرېشانه دنيا ګې کړو ګډ ځوان خيرې
لېکن چه ما کتل و رته يو ګل و په خند ا و

ما وې چه يار به چېرې د ما نه شي حقيقت دی
تعبير يې شو دروغ که هر څو خوب زما رښتيا و



ګڼې د مطلب يمه تر څو چه مې وران نه کړې
يـا د لـره ا شنا چـه هـېر ولی نه شې مـا

زه به ستا خبر يې ته بې وزنه ولې وا يـم
ما خو د ومره وو يې چه تللی نـه شې مـا



هېڅ مخا لفت د خپل ضمير نه شـي کېد لـی
بيا زما دو هم محله تعمير نه شي کېـد لـی

مينه نور څه نه ده، خو بس خوب د لېو نی دی
څه يې په ليد و، چه يې تعبير نه شي کېد لی

زه دې سودا يي يم د کا کل، لېو نی نه يم
چا وې چه علاج مې په زنځير نه شي کېد لی؟

پېښو د ـ ٨

ځان دې چه خپل ولید د مین په آینه کښې
ستا د ښو ټال کښې حیرانی و زنګېږدې
مخ دې که څرګند او که دې پټ کړ خبر نه یم
خوب کښې د ځوانۍ مسلمانۍ و زنګېږدې
فرد د رسوایۍ کړه پس د مینې عدالته
وشوه کنه اوس خومې ځوانۍ و زنګېږدې



همت موچه شل نه وی، که ځغل او ږدوی، نو څه شی
که پېغلې حوصلې دی نو ځلمې دی احساسونه
صحرا د پښتون خوا کښې، کرونده ده د ګلو نو
پسرلی د ملیت شو لو، رېږی ارمانونه



# د افغانستان د خپلواکۍ د جنګ

## یو یادښت

«د کافرکوټ» غونډۍ ته وختمه څار کومه
ما ته نژدې ماضي په لاس کښې آینه نیولې
د واقعاتو، حوادثو پټکښې ښکار کومه
هرې غونډۍ چه خلاصه ماوته سینه نیولې



تندې تراوسه دي، لا بوټ د ښکار غلي دغرونو
چه په دوی کړی ؤ، تېری د پرنګي پوزونو
«لنډۍ خانې» نه ورو په ورو د توره غونډه پورې
د تورو وچو غونډۍ غرونو سلسله تللې ده
د هیبت ناکه خاموشي یې یو ښکلا که ګورې
یا لمر خـا ته ته دد یوانو قافله تلـلې ده



قطب تـه څـه تـورې ور ښځې دي د مورګو په سر
کـه پـېغلې کوڼې پښتنې دي د پښتون (۱) د لښکر
یا پښتون له ځانه ورک دی، چه په خپل نظر کښې سپک دی
څه خوشته دی په دامنځ کښې، چه سکون د زړه مې ورک دی
تا به و ښه کړم یا ړوبه، وخت د چړ دی پښتون سیمې
دواړو کسو ته مې ځیر شه، یو آمو دی بل اټک دی

لواړګی ـ ۲۸ـ۹ـ۵۸

---

(۱) پاړکی دی، د مسدس په شکل.

# میا احمد شاه مرحوم ته

(دا قطعه ما احمد شاه مرحوم ته لیږلی وه چه د هغه د خط په ځواب کښې وه)

دژوند په راز خبر، په دې یو هیبری خزان راشی
قدرت چه کړی تکل د ګلستان د بدلو لو

شاعر لکه بدل چه کاندی، کړه وړه د خپل نظم
وریښښ چه ضرورت شی، د عنوان د بدلولو

پسرلی دې ستا مرض شی، د پښتو ادب په سیمه
همدا دې یو سبب شی، د رجحان د بدلولو

احساس په مشر انو کښې پیدا د قومیت دی
دا زیری د قدرت دی، د افغان د بدلولو

لوا ړګی ۲۴، ۶، ۵۹



په غره کښې وی هوا او که او به، پکښې ژوندون وی
نن لاړ و حیدری ته، کله کوز او کله ختی

لالس نه وې بچې، چه لوږې واخستم په مخه
«شیراز» را له وراته کړه چاو پښتلی وودوه چتی

حیدری باغ ـ لوا ړګی ۵، ۹، ۵۹

تخلیق کوی د مینې مخ او زلفې چه بر بنډ وی
پیدا د جنسیت او لطافت په منځ کښې ښځ شی
لېکن بې حجابی چه شی ، سوا له مخ او زلفو
د مینې لطافت په حیوانی ګرد و کښې پټ شی

پېښور ۱۳-۹-۵۹



هنداره چه په لاس کښې د «پروین» و نیسم زه
ښه ، بد به را ته ښایی د ملت په هر قدم
د «نن» د تقاضا نه مې که خلاص کړ لو خپل ځان
شك نشته چه به ختم شی زما «د سباغم»



# ملیت

کامل چه شی ادب، نو دملت د کالبوت زړه شی
او زړه یو ضمانت دی په کالبوت کښې دژوندون
ملت چه مکمل شی سا د ګی پکښې پیدا شی
تش بربنډی آینې غوندې باطن کښې ننداړتون
هر شی که په نړۍ کښې آینې ته مقابل شی
جواب کښې آینه هم هغه شی کړی رابېرون



بنیاد دخپل تهذیب او تمدن دې بدل نه شی
هر څو که د خارج نه ضروری استفاده وی
احیاد خپل تهذیب مې له یوماره څخه زده کړه
خپل زوړ پوستکی و باسی خو رنګ یې هم هغه وی



تر څو چه وی ادب قبیلوی نو ځان په ځان وی
یو ځان به شی منمه، خو چه یو مرکز ته راشی
لښتی سر په سند ز و په دو دو ر سی و لو ته
ولې چه یو له بله ګلېږون و کاندی دریاشی



ستا و ینس که لاشعور شو نه به پوه په حقیقت شې
خلاف دی له فطر ته چه څوک وایی بله ژبه
پرده ژبې غائبې شی پیدا چه رنځوری شی
بیا وایی «وه ادې» او «وه بابا» پخپله ژبه
کابل – ٤ ر ۹ ر ٥۷

دا سې کرم وکړه چه زه پاك له د نيا پا څم
څر نګه چه وچه د ا و بو نه هيلۍ پـا څـی
تاو دعشق مې و بو ګنبد له يخـو ا سو پلـيو
کله وی ممکن چه بې بو کې له سيلۍ پا څی
عشق و ته مې و لې د د نيا ګو ر تـو ې غشی
حيف دی چه ومر ګې دنا رينه ته نجلۍ پا څی



دخيالونو جزيره مې د وحدت لاندې تشکيل شوه
که کثرت مې دما حول شی طوفا نونه څه به وکا
دهستۍ دد اپرې نه با لا ترد ساقی جا م کړ م
که مېچن شی په ما چور لی اسمانونه څه به وکا
پېښو ر ۸ ر ٤ ر ٦٢



دښېښو ونه دی عادت ، چه پښتنې ستر ګې دی
خوای دحسن کور به! دلته مېلمنې ستر ګې دی
شوخو ککيودې دزلفونه کړی جوړې کړې
اوس خو په هر نظر مين ته زو ليغی ستر ګې دی
ستاد بڼو غشو ليندو، و رو ځو له شوقه اشنا
دشهادت له شوقه ستا په لور کبرې ستر ګې دی



# د قیامت پیش ګویی

وایي چه جدي کښې اجتماع دا تو ستوریو ده
جوړه شه غوغا کړه په دنیا کښې نجومیانو
وایي چه قیامت راځي په دغو دریو ورځو کښې
تک وهي د لاسونه، پورې خاندي د انسانانو

✡ ✡ ✡

موږ به ورته «دلو» د «جدي» د لاندې راولو
څو مره چه طوفان یې وی په دې بوکه کښې ورك به شي
نه راځي قیامت چه څو نږه ته امام رانه شي
وېرې چه اخستی دي کوم زړونه هغه سپك به شي

لوا ملګی - ۳ ر ۲ ر ٦۲

✡ ✡ ✡

تا چه زلفې راخپرې کړې مستې سترګې دې کړې پورته
نورخو هیڅ رانه ونه شول ما ورپځوته نارې کړې
دلبری درته مازده کړه، زه دې هېر کړمه دا ولې
بنیادپه شی چا چه پور ته عمارت ته منارې کړې

✡ ✡ ✡

نا پوهه وې پخوا به ددیدن په وخت کښې راغلې
اوس پوهه چه شوې اوښکې پښتنې، ولې راځی
بس هغه یوه شپه وه چه نظرېې رانه واخیست
اوس ختم انتظار دی نو دا شپې ولې راځی

✡ ✡ ✡

دسکان اشنا په غم کښې تر سکو نې او ښکې راغلې
دسرو لبو په یاد کښې یې میګونې اوښکې راغلې
بېلتونه له مودومې وې په سترګو کښې ساتلې
دباندې ستاله جوره زما جونې اوښکې راغلې
بند و نه د حکمت په مخه یو ړل عاشقه
خالي یې دزړه کور کړو اپلاتونې اوښکې راغلې

پېغلې چــه غــم او ښکــې پښتنې کــړ لــې
خو د يې ر و ا د ا ر ې د پر د ې کړ لې
او ښکې مــې پــه جام د ستر ګــو و څښلې
سترګې چه سا قی را با ند ې سرې کړ لې
ستا پــړ و نــی حسنه ســلا مــت ا و ســه
خا و رې که تا څو لو ړ ې شملې کړ لې



ښکل حسن چه نه وی څوك په چا مینډی نه شی
اورکه وی په چا کښې، څو بې اوره بلېدی نه شی
مینه مې فطر ت وه حاد ثو مې نظر تت نه کړ
سترګې د ما هی دابو منځ کښې پټېدی نه شی
څرنګه شو ګیرۀ چه پسخاك مې دوصال کړ و مل
راغی اشنا راغی، زما ستر ګې غړ ېدی نه شی



ستا ګوابښ کړې زما ښکلیه داسې داسې وار خطا
لو یدی، نه ستنېدی شی چه حیرانې اوښکې دی
دښکلیو په نظر کښې که ارز انې وی هر څو
تو ئېږی په الفت کښې په ما ګرانې اوښکې دی
فر یا د یې لا سو ا شی اشنا ستا پــه د لا سو
نا پوهه دی ناز بینې ،ما شو ما نې او ښکې دی

# يوه شپه

دريادبه وي زموږ دوصل شپه وه موسپدلي
بر ښنا مې هره او ښکه ښتنه وه موسپدلي

يو رنګ به د رقيب په مخ را تللو بل به تللو
ساقي چه ستا په لاس را ته کاسه وه موسپدلي

هرڅو به کړې ما بلې، بيا به بېرته ړيوې مړې شوې
لېمو کښې دې مستي ، يوه لمبه وه موسپدلي



ستا نه را تګ به ، ځوان په تنهايي کښې زما غم کړي
داځکه خو اشنا ز ما د کور لارې زړې شوې

چه تا را ته کولې ، باوري وې ستا خبرې
چه زړه را ته هم هغه کړي ، ر'مخکښې وسوسې شوې



مه پټوه مخ را نه ، رڼا مې د مخ لا ړه
زه هم يو بخري ، اشنا ستا د اننګو يم

څو چه په تکل دا لو تو يم ، ستا په لورې
هومره زه پوهېږم چه خپل ځان ته په را تلو يم



حال ته زما وګوره نن ، اي د خرما ونې ته
زه چه د کوم حال ځنې کوم حال ته ر سپدلى يم

ته لا هغه شان يې او د نيا بدله شوې ده
سپين مې دي وښته ، چه مو ده پس در ته را غلى يم

زه به چه راتلم، نوم په د پرشو، په دوه د پرشو کښې
اوس چه در ته راغلم ، شپږ پنځوس ته ر سېد لی یم
زه شاعر ، ادیب ، متصوف ، فلسفی هـر څه یم
بیا هـم کله شی چـه ، حقیقت ته ر سېد لـی یم
کمپنی باغ - پښور ـ ۲۶ ر ۲ ر ۶۳



ذوق مې د جمال په ننداره و هلې مې یوړی نه
خدایږو سې یتوب کښې لازما برخه وافره ده
لاخو د «ناظر» (۱) ستر ګې غم یوړی پکښې شکر دی
هله دلیکو الو مې، هر څو که بې «باصره» (۲) ده
لوا ړه ګی ۱۸-۳-۶۴



تهذیب یې د پښتو ، له مغربي لولې نه زده کړ
خوی بوی او هم لباس یې مغربی را معلومېږی
حیران شم چه خبرې په پښتو کوی ، نو وایم
هلک شوی ټیکلی دی، چه په هلو کښې یې غوږ ږی
۱۵ ر ۵ ر ۶۴

(۱) لعل زاده ناظر شینواری .
(۲) مرحوم حاکم شاه باصر شینواری .

# آزادي او ژوند

قوت له اتحاد ه ، د قوت نه آ ز ا د ی ده
دژو ند په راز به پوهه شې ، قرآن خوولو له
وتی شې ته، دځمکې داسمان دهر یو کوټ نه
لا تنفذ و ن الا بـا لسلطا ن خـوو لـو لـه



راو ستی ځنکدن ، چه په کوم قام وی کړو چارو
چه ژ و ند وی پکښې پا تې غز ونې وکړی نېغ شی
د ځمکې طا قتو نه ، خو د تخم دانه ز مو ل کا
تحریك د آز ادی دژ و ند یې و لمسو ی نېغ شی



عادت خودې پرېرمات کړ و، خوخلاص نشوې له عادته
پورازپه دې کښې شته دی که یې ز ده کړې له قدرته
عا دت ور کول نه دی ، په قبضه کښې را و ستل دی
خبر به هم له د ې شـی ، د فطر ت له نـهـا يته

لوانډکی-۱۸ر۱ر۶۵



ښکلیه حقیقت کښې زه او ته سره یاران نه وو
بس خوسره دواړه وو ملګری دیاری په لا ر
لاره شوه نر یه ، بیا تتېده تتېده ورکه شوه
ښکاری دې اشنا ته رسېدل د بې لار ی په لار

شاعر په بل هیواد کښې وي دقام دستر کو کسي
شاعر په پښتون خوا کښې، لیونی اولا ملنګك دی
ښکاره ده چه راغونډ وي، پتنګان په بله شمع
پښتون عجیبه شی دی، چه دمړې شمعې پتنګك دی



داصول دپاره کار کړه هر یو کار دې عبادت دی
وخت د کار دی چه تېر یری، بیا دې وخت دعبادت دی
بې فرصته خوشحالی هم هسی وخت ضایع کول دی
خوشحالی هله روا ده، چه له کاره دې فرصت دی
کار دې مه پر پرده په غم کښې، مناسب دی چه لا زیات شی
دغمژن نفس ته ګوره، په ژړا کښې په سر عت دی
چه هر کار یې په خپل وار دی، هغه ښه دی ګڼې خوار دی
کار په خپل وخت و محل کړی، دستور هسی دقدرت دی



پښو لی دې وربخ، د فنا نه شی
دژوندون په افق وکړه بر پښنا برقه
دحمزه له زړه به دردوغم شی لرې
خپلې زلفې دې که پور ته کړې له فرقه



خراب نه وی شعر ښه دهر شاعر وی
کور به ړدی مېلمه ته هر څه چه حاضر وی
هر کلام یې آینه د اضطرار وی
دافسون نه واقف نه وی، خو ساحر وی

سوداپی وی په عالم د شهادت کښې
لکه امر په معنوی جهان ظاهر وی
پرې باران وی ، د حکمت د مرغلرو
څه ښکاره کاندی ، څه پټې چه باصر وی
لواړګی - ۱۲ - ۲ - ۳۸



د ګل غوږ د خوش بوپی ء خبرې باسی
هیڅ خبر په ترانه د بلبل نه وی
څپل فریاد د عندلیب د زړه ارام دی
هیڅ ارام یې له نا بود فانی ګل نه وی

✡ ✡ ✡

و به ر ږې هغه فصل ✡ څوك چه کوم تخم کری
په بدې کښې نېکی نشته ✡ ګید ړ نه زیږی ء زمری
یو صفت د څاروی و اخله ✡ چه درانه وی پرې وری
زړه سوری له رازه ډك وی ✡ شنه و ابنه ساتی کوری
چه په خونه ، په نیاز نه وی ✡ تېر تر ز هرو دی تری
ای شیدواریه! ښه هغه دی ✡ چه کوم ځای خوری هلته مری

✡ ✡ ✡

ښتا په څېر هزار د ګل کلی شته
که دې سیال په باغ کښې نه وی نوړ لی شته
که وی تا څخه نظر او رنګ و نکی
ما څخه هم اسو یلی طوفان سېلی شته
په ښایست او لطافت چه غره نه شې
په صحرا کښې مې د فکر ګل د لی شته

د د نیا تېرسن ته یم ، په فکر تللی
ورته څه ګاڼې راځی او څه ترې ځی
یو ساعت یې دروی چه سودا و اخلی
خلق داسې شی مفتون چه نه ترې ځی

ډیلی -۱۵-۸-۴۰



چه دغره په سر کښې نوم دما غزه نشته
چه ډغر وته ورځي سر به دې مات شی
په پنجه د زور آور سره و ر مشه
یو وزر به د پلار کور به دې میرات شی



د رقیب په ښو خبرو ، غلط مشه
زهر تل لړلی کېږی ، په خواږه
که بد خویه وی، ته هم په هغه شان شه
کږ و تورو ته ، پکار تېکی کاږه
زه رقیب په ښو خبرو و غولولم
په خوږو کښې شی ، د زهرو ګولۍ بده
که دارو غواړې اکسیر هغه تشخیص دی
چه د او شی د مرض وی لنډه بده



# صنعت رقطا

زه یو نیم یم، چه دځان له نیمه نیم یم
زه یو یم یم چه دځان له یمه یم یم
خوښ هغه به شی، چه ویر په ویر په ویر شی
زه چه پوه په ویر په ویرنه یم نوغم یم
که بدن می شو بدن پسته یې بویه
ګڼې زه بدن دځان که یم نو پم یم



که په ځمکو ځمکې جوړې شوې پټ نه شو
پرې تر اوسه د جهد د نیلی اسم شته
بې نیاز چه له حاصل او نتیجې ؤ
اوس چه دوا بره تري څرګند شول هغه هم شته
دمړه روح دژوند طلب دې پاتې نه دی
ګڼې شته دی مسیحا ناره د قم شته



شته په ګیلړه کښې دکال ٭ هم پسر لی هم پشه کال
په عمل کښې موندہ کېږی ٭ هم ثو اب اوهم وبال
په انسان کښې خالق ایښی ٭ بد رنګی او هم جمال
ځکه زه په مزدوری کښې ٭ هم خفه یم هم خوشحال



د همت په کلکه ژیه دمر اد نښه
چه یوتوغ دقام زلمی ولی ولاړ شی
شی انسان چه پوره فرض دسړی توب کا
لینده نیغه شی چه غشی ځنی لاړ شی

نه دولت دی نه خوراك دی نه جامه ده
دا خواهش دی چه انسان ترې سرګردان دی
یو قانع مې ؤ پـو ښتلی پـه دې حقـله
وې چه دا دومره مشکل دی چه آسان دی



د ګرېوان د خیرولو آب مې نه ځی
زه اوده یم لېو نتوب نه اوده کېږی
که او دې دې ښکاری نیم پرانستې سترګې
د محشر پکښې آشوب نه او ده کېږی
هیڅې وا خستې قبو ل، شولې غا فله
څوك په وخت د ناوې توب نه اوده کېږی
بمبئی ۲۹، ۱۰، ٤۱



# خپلې مينې ته

اوس زما په تصور در ځي کـه نه
تا به نوې ميا شت ز ما په مخ ليده
چه ته نه يې ميا شت مې تېر ه بې کتو کړ ه
بې له تا به مې دچا پـه مخ ليـد ه

✡ ✡ ✡

ځا ن ته پوه ويل کو نښې د پوهېدو دی
ښه پوهېږ.مه په دې چه نه پو هېږ.م
زه ليند ه يمه د عقـل غشـی ولـم
بيا هم زه يمه کړ.ه که را سمېږ م

✡ ✡ ✡

ولـی ښه ا و که نه دفـکر غشی
ولې ژ ځه دار ادې ده چه را ګښه شي
عقل سر د نيا ز ښکته کړ ی چه کار کا
چه ليند ه ګوز ار ته جوړ ه شي کږ ه شي
ښېبنې ۲ـ ۱۱ ـ ۴۱

✡ ✡ ✡

چـه دعقل نا کا مي شي ، و ر معلو مه
سـړ ی هله خبر د ا ر شي ، لېو نی شي
په جمر کښې د ګو ګل چه اور دعشق وی
هر يو څيز پکښې بې يا ر ه سپېلنی شي
نه شتشك چه بې کاری او کار خويو دی
و لې کار چه بې مقصد وی بې کا ری شي
بيداری اوخوب څه دوه څيز ونه نه دی
خوچه خوب لره خوب ور شي بيداری شي

رنګ تري نه دروځي که ګل دی بې دماغه
بوی ساکن شي چه مشام ته ورسي
روح دعشق دقدسي تنو په نصیب دی
هسې نه ده چه به عام ته ورسي

✡ ✡ ✡

خپل حاجت که کړې پوره له خپله ځانه
پسته پوه به، په دا راز شې چه غم نشته
لکه غنۍ دې کورجوړ کړه، دخپل تن نه
ګرفتار دې ښکار په جال کښې څه کم نشته

✡ ✡ ✡

ستا مې نوم کړ همېشه لره روښانه
په داځه شي که دزړه غمی مې تورشو
دتصویر تصویر کیده، له خاموشۍ وی
هغه مه ګڼه حیران چه ګلې په شورشو

✡ ✡ ✡

بیا څه وېرې ور ځی پس د خرماونې
درله راغلم چه زاوړی مې یو داغ دی
دمرګی خزان مې کور کړو بې بهاره
ته خوښه یې چه په برخه دې لا باغ دی
کمپنی باغ پېښور ۸-۱۱-۴۲

✡ ✡ ✡

تر دې حده دې طالب یمه دلبري
چه دویرې نه ر مال پوښتلی نه شم
ور سره دو یم کچه هم وه په زنه
چېرته لاړ ؤ، زه دې خال پوښتلی نه شم

خاموشي يې ډېره ښه ده مبارك شه
خوچه وايي هسي نه چه بد زبان شي
ښه چه موټې وي ترې طمع دكرم شي
څه پكار ده چه تش توروى چه عيان شي



دولت منه پنځه وخته به بند ګى كړې
كه دې و لګى جا موته پيو ند و نه
لكه مېخ چه ټك وا هه شي نه خمېږي
ګو تې تن لره پكار دى په بند و نه



د بېديا خبر ې پر ډېر ده دكور وايه
چه ليلى په بېديا نشته مجنون كور ښه
په چپيامې غلط شوي چه را ضي يم
ګڼه څوك وايي چه شور ښه دي خوشور ښه



د دولت لالچ وهغو لره وركړه
چه په خپله په خپل كور كښې زر لرى
د قوت اثر په هغو به پر يـو ځى
چه پـه خپله د قـوت اثـر لـرى



# په سوات کښې

کړه بېګا مې مېنګوره کښې شپه تېره
چه قسمت مې ؤ، دې آب او دانه کښې
د غریبو په جونګړه کښې تازه وم
مېرغزن یم په شاهي مېلمانخانه کښې

# طواف

که چا پېره د صاحب له قبره چور لم
په حصول کښې د رڼا لرم ز په صاف
مانعان دې له حیوانه عبرت واخلي
پتنګک هم کوي د شمعې نه طواف
پېښور -۲۸-۳- ٤٦

# د کریم خوی

په فطرت کښې د کریم حیا لازم ده
هېڅ حاصل له حیا بې له عطا نشته
هېڅ پکار نه دی له لوپه سوال وهوکی
په ګوهرو نېمګړ تیا د دریا نشته
دریغه ظرف مې قمری وی ډېر په ښه ؤ
چه خور شید ځخه کمې د رڼا نشته

# شیطان او انسان

شیطان نه بلوسې پرې، ځوک چه سړی نه وی
د خپل نفس ور سره بس ګڼی لمسون
چه سړی شی، بیا یې نفس ته کوی لمسه
که خامې وی، کړی ښکاره یې په افسون

# دعالم حقيقت

ډېره زده کړه مې لا تنده کاندي ډېره
لا مې پوهه نا پوهي ده چه زه ځغلم
چه ور ور سم سراب وي هر يو علم
د عالم له حقيقته لرې ځم

## مرحوم باصر

غونچې دلې سپرلي پټ شول پکښې پاتې
ګڼې ډک له سخن زړه يې ؤ باصر
څنګه ژر ورته خوب ورغلو اوده شو
د بقا له جنګه ستړى ؤ باصر

✡ ✡ ✡

ارمانونه دې مسکي نه شول، په زړه کښې
ناپرانستې رېدۍ پټ داغونه يوړل
ترخه هم دې زرغونه په قبر نه شوه
تا د ځان سره رنګين خيالونه يوړل

## پسرلى

بره اسمان په غوړېدو راغى
په موسېدو په خندېدو راغى
کوزه شين فرش په غوړېدو راغى
په موسېدو په خندېدو راغى
چېرته غوټۍ وې بو ګنېدلې سترګې
چېرته شبنم دى موسېدلې سترګې

د لته چه رايې ووړه، ترې جوړه شو لو داغ
ثريدى ګلې په هيوټ کښې چراغ
دهرې پرخې په دنيا کښې يو باغ
بيا دې باغ په هر يو ګل کښې دماغ

تا د هر ګل نه را ته داغ جوړه کړه
ما په نېشه کښې ترې ايا غ(۱) جوړه کړه

## امير کروړ

د پښتون له جلا لته جمال زېږى
تود که اوردى لو ګى سوړه پيدا کوى
د پښتون دا يو کروړ خو په ځاى پر پرده
دا ادب دا سې کړوړه پيدا کوى



که په نغښته د پښتون دې ده نمنځنه
د پښتون دادب هسك در باندېو ياړى
د هر ځلك نه يې بختو نه را ځځېږى
ملتو نه هم دا هسې ستورى غواړى



و چتو بې د سر ونه ده پرې را غلې
د پښتو ن په سيمه تل دمېر وځول دى
شته ختکو، ابدالېو کښې، غلجو کښې
بيا په واړو کښې ښکاره دلودى کهول دى
پېښور - ۳۱ - ۱ - ۵۴

(۱) يادګى دى د مسدس په شکل .

# دزړه ګرزندی

پوه‌یږ تصور کړمه ،دژوند په راز
پا تې چه اشنا ته مې اسر ې نه دی
تېرې تورې شپې دوصل چېر ته دی
لاخو دهجران تور ې تېرې نه دی
لا دزړه ګرزندی دی ، آباد زما
وران شوم،خولاورانې مې دېرې نه دی

## خوازه‌یادونه

چه و وژو ند ، هغه نا زو نه لټو م
خپل نیمګړ ی ، نیا ز و نه لټو م
بې نوا ستر ګې مې ستا په لور ، ځلور شوې
ستا په ستر ګو کښې ر ازونه لټو م

✲ ✲ ✲

په ژړادرپسې شنې شوې ،دزړه شاړې
په خنداې کړې ،دزړه‌دافق غاړې
ستا پیکر ۆ د نا سو ب د قا لب ستر
پسته و پېژ ندې خلقو ، چه ته لاړې

لواړ ګی -۲۷-۶ ـ ٥٤

## وعده

تا چه وعده‌د پنځلسم را کړه
بدر ته ووایه ، چه ځان مه خوره
لیدلی چا د ښکلیو نه دی انظر
مینه مه ژاړه چشمان مه خوره

# لېونۍ ته

دا بادۍ نه چه صحرا ته ځـا موشۍ ورسـی
شی ېږ بوکې دفنا شو یو لېو نو شور وزه
شوه سلسله د جنون او یه که شوې ېږ ته په خود
چه اوربدی دې نه شی، نن دزولنو شورو نه
لوا له گۍ ـ ١٦ ـ ٧ ـ ٥٤

✿ ✿ ✿

چو ر لی د فکر د محو ر نه یقین
ځکه ر وا نه شوه اسما ن و د ر بد
تنگ دې کړ و اوښکه ، لېو نی یې نه که
چه را غلو ستر گو ته ار ما و در بد

✿ ✿ ✿

هو مره د فهم پر و ر ش دې کو ه
څو چه مفهو م ته ر سېد لی نه یې
طا لبه علم تر هغه د ی پکا ر
څو چه معلو م ته ر سېد لی نه یې

## عالم

ما یو هو ښیا ر ته و و یل د علم
وکړه تعریف هسی چه دم وی پکښې
هغه و یل چه مېو ه د ا ر ه و نه
او په خصوص سره چه خم وی پکښې
ما و ر ته و ې چه لږ د دې نه اوچت
و ې چه لېمه بیناوی نم و ی پکښې
ا و که له د ې یـې هم اوچت اوری
عا لم هغه دی چه عا لم و ی پکښې
پېښور ـ ۲ ـ ٤ ـ ٥٣

# اجازت دی ؟

پښتنګی د ر نــه پښتو د ه هېر ه کړې
چه کیسه یې را په خوله کړم اجازت دی ؟
وا یې مو نږه سره ټول مسلما نا ن یو
ډېره ښه ده، زړه دې ښه کړم اجازت دی ؟

د پښتو په ځای تعلیم په ار دو ښه و ی
هیڅ خلاف به ترې و نه کړم اجازت دی ؟
یقین وکړ ه چه زه ستا نه خلا ف نه یــم
ولې پوه دې چه ابرزه کړم اجازت دی ؟
په ا ر د و مې ژ به نــه چلې صــا حبه !
په پښتو خبر ې و کړم ا جاز ت د ی ؟

## خپله ژبه

ته چه قلم و ا خلې هند کــو و لیکې
هــم ا نــګر یزی او هم پا ړ سو و لیکې
منــم ، و یلــی شــې پښتو ، پښتو نــه
پښتو خــو د ا د ه چــه پــښــتو و لیکې



په پر دو خښتو ، په پر دو تیر و نــو
د خپلې خــو نــې تــعمیر و لــې کــوې

منم، چه خوب خو، په پښتو کښې و ینې
بیا په هند کوا یې تعبیر و لې کــو ې
منم ، چــه فکــر پــه پښتو کــو ې ته
په ا نګر یز ی یې تعبیر و لې کو ې

# انسانیت او حیوانیت

څو چه وېره تر هغه نه وی سم به نه شی
لوی صفت شته په انسان کښې د حیوان
چه یاغی دخپل مالك نه شو دا حال دی
شو ل فو ځی حکومتو نه د جهان



دی وران شوی که جومات ؤ که کوټه وه
نن چه راغلم دلته زه دربې کاله پس
تو چه یې جوړه مرقد و ته څوك نه کا
نن شهید بابا کښې نه ښکاری یو کس

شهید بابا - بچکی - ۱۵ ر ۱۱ ر ٦ ٥



ژوندیې چه موقوف ؤ دښایست په دید
پېښې شو ضرورت د بشر ستر ګو ته
ګوره چه پښتون زړه مې احساس کړو هېر
نه پرېږدی دا اوښکې ګوهر ستر ګو ته



نن مې په شونډو تبسم ښکاره شو
دا څه نا څاپه انقلاب راغی
اوس مې نه ویښه او نه خوب پاتې دی
دی چه په ویښه نه په خواب راغی

زړه مې استقبال و ته را تلی نه شو
او ښکې مې لېمو ته را لېږلې دي
ځواني مې سلګۍ کړې په زغم زغم سره
ستا دې تغافل ته مې پالـلې دي



ستا د فکر ژرنده پخه په ګناه شوه
خو د چنجن دې نو د عقل مشتکی شو
دژوندون، وله په ځوږ ده ور ته ځیر شه
چا چه خوی د فلك و پېژ اند سړی شو



شو نلې خود، دازادیه ناوې پرې سرې کا
چه د قام په غم کښې څوك میده میده شي
عرف عام کښې خو پوستکې دې د اوغزو
چه د وني نه جدا شي د ندا سه شي

۱۹ ر ۹ ر ۵۷ ـ



# انتظار

راغله زړ بوډی می په مړیو نو ارمانو نو
زه لا د پښتو ن دښا ځلمو په انتظا ر یم
تو د چه کړی مجلس دازادۍ په پښتو اخوا کښې
جذبه ستا، دیخو او سپلو په انتظار یم
زړو نه دغوټیو چه پړك پړك له خنداوچوی
زه د هغو شو خو پسر لو په انتظا ر یم
دالویه نړۍ یې چه صحرا دیوه محفل شی
بس د هغو پېغلو بړ بوکو په انتظار یم
کابل - ۲۱ ر ۸ ر ۵۲

د منګلو چه ؤ جنګکی، نو و مـه د لته
نن کابل ته ځمه ناست یم په، تورخم کښې
و یا ړ م زه د خپلو اکۍ جشن ته ځمه
کړی ځوانې مې غزونې په قلم کښې
تورخم - ۱۸ ر ۷ ر ۵۷

هغه شپه ړ که جو لۍ لا ړ ه ماضی ته
په علمی ځېږ نو ځلند یې چه حال ؤ
جلال کوټ کښې ادیبان یې ټول راغونډ کړل
مېلمانه وو مونږ، کور به زمو نږه سهال ؤ
جلال کوټ - ۱۸ ر ۸ ر ۵۷

زه نن نهه کاله پس په جلال کوټ کښې
وینم دا چه اوچت شوی ډېر افغان دی
د ما هـر سر ه سحـر ځمه کا بـل تـه
لا به و ګورم کابل چه په کوم شان دی
۱۸ ر ۸ ر ۵۷

په تعمیر کښې کچه خښته په کار نه ده
ښه پاخه اجزا ، پیدا کړه چه ګل غواړې
په زحمت کښې دا نکته ده چه رحمت شې
د اغز و سره اشنا شه چه ګل غو اړې



دیو لاس نه چېړې ټك ختلی نـه د ی
سترګې دوه دی یو نظر ترې عبار ت دی
چه معیا ر د سړ ی تو ب له ره پکا ر و ی
ا تحا د هغه د د یـن ا و قـو میت د ی

کا بل ـ ۲۲ ر ۸ ر ۵۷



د پنجشیر داوبو رود دژ وند او به د ی
فر دوسی هو ا ، هو ا د ګل بها ر ده
د چنا ر و نې قطا ر لکه عسکر د ی
دلته ځوورځې استو ګنه خوپه کار ده

ګلبهار ـ ٦ ر ۹ ر ۵۷



و ختونه در ومی ملګر تیا یې ښه د ه
خو خپل قا می امتیا ز ، مه ورکو ی
وخت چه څه یوهل هغه ستا سو نه دی
را زونه اخلی ، خو راز ، مه ور کوی

کا بل ـ ۷ ر ۹ ر ۵۷

# ځلمو ته

څه په تدریج او اعتدال سره ځي
دا کاینات، هم یې نظام وګوري
انقلابي ذهنیت، ډېر ښه نه دی
زور د سېلاب، هم یې انجام وګوري



ای د پښتون ملت وړو بچیو
سره را غونډ شئ چه یو لمر شي پیدا
ستاسو هر یو فرد، دې یو ایتوم شي ثابت
چه کوم ساعت ورته خطر شي پیدا



د مستقبل دجامعې ځلمیو
منم روزنه د ملت ده پکار
له یوه لاسه ټك وتلی نه دی
ښه ملګرتیا دحکومت ده پکار

کابل ۹-۹-۹۷



دا منم چه هرو ګړی دې مجنون کړ
ډېره ښکلیه چه خوی بوی دې دقارون کړ
هم په تا به شي یو بار د حسن ښکه
خپل نظر چه ورته ما لکه پښتون کړ

# په برو شینوار کښې

د فطرت په منظرو یم خوشحاله
د سپین غره د مورګی، دې ښکلې لمن کښې
د اهلوال چه راته ناست دی ساده ژوند کا
فردوسی دی دلته ژوند په داوطن کښې



د اوریځې چه په مورګه را خپرې دی
ودانی دی چه را اوری په شینوارو
په دې خټ کښې مې د زړه نه ندا راغله
په رښتیا چه زرمین وی په زر دارو



د شینوارو د سپین غره له ځنګو مورګو
را روان دی د خوړو او بو رودونه
دلته خلق همه واړه ساده ژوند کا
کرونده کړی، پخوانی لری دودونه



چه مې زړه کوی هوا په طبع راست یم
جوړ په خپل اصلی ټاټوبی کښې نن ناست یم
عزیزان شینواری ټول راته راغونډ دی
خدایه تل یې متحد لرې په خواست یم
۵۷/۹/۱۱

له پرونه چه زه دلته یم را غلی
په خندا را ته ددې سیمې فضا ده
غیرت مې محسوس نه کړو په ماحول کښې
زه ددې یم دا فضا جوړې زما ده

٥٧-٩-١٣



هر طرف په شاو خوا کښې ډیوې مړې دی
باده را ته چه ډیوې مې ګل نیو لی
څه په دا چه مې خما رنه پیدا کړې ی
هر یو څیز که را ته جام د مل نیو لی

برې امام بنډی ٢٤-١١-٥٧



څوک چه دلمر مخ پوشی، رونا نه شی
وایه شبستان دقمر چپر ته دی
پښې مې چه بې واکه دتادر ته ځی
بیا ولې پوښتې چه مې سپر چپر ته دی



# رمضان

یو عادت دی، داعادت چه ماتول شی
دعادت نه ماتول هریو عـادت شی
چه خلاصی دانسان نشته له عادته
بیا په کار هغه عادت دی چه رحمت شی

لوا ړ ګی ۲۰- ۳ـ ۶۰

چه منزل دا طمینان به کله را شی
دسکون په طلب ګرځمه پرېشان یم
تلون را ته غمی دپو هی را کړ ل
دمعنی تپوس له ما کړه، زه یې کان یم



که نا توان وی هم چیرې نه پاتې کیږی
چـه پخه یې ارادوی هغه تـلی شـی
دا یمان څوانی له پـاکه ربـه غوا ړه
غرلاڅه چه پرې اسمان ته هم ختی شی



په ځوانی کښې هر مشکل هم سهل بریښی
لکه سمی چه دغره نه نـژدې ښکـاری
ته که زوړ شې، خو همت دې چه زوړ نه شی
په رښتیا که ته په ښت یې د شیـنـوا ری

لوا ړ ګی ۲۴ـ۹ـ ۶۰

١٥٢

# دخوشحال دیادوني ورځ

روماني جذبه دې ښه‌ده شا ځلمیه
خور ومان دې دپښتو سره کوه
دخوشحال باباد قام ځلمیه کهوله
ژوند او ژواك د ننګیالو سره کوه



ای دقام مستقبل روښانه ذهنه
شفقت د پښتنو سره کوه
دهلال غوندې روان او سه غځیږه
خیال دقام دتورو شپو سره کوه
دهوسۍ غوندې معصومې لره ستر ګې
خو خبرې دز مرو سره کوه
١٦-٤-١٦



هیڅ انسان له خپل انجامه خبر نه‌وی
بې خبره چه ژوند تیر شي ژوند خوشحال وی
دفطرت دوه ننګی: خزان، بهار دی
دغه ونې چه خېرازه کال په کال وی



# غزل خوان شو

دمور پلار په وینه وده داولادوی
دور ښمو چنجی ورک شو، خوعیان شو
چه ځوانی یې د بابا وی، زوی وی طفل
چه بابا دغزل زوړ شو، غزل ځوان شو
لواړګی دچار باغ مشاعره ۱۸-۶-۶۲



تلم چه د حسن د لمبې په طلب
تر ینه پریشان لکه لوګی راغلم
ستا په ستم او په جفا اشنا!
خولې ته دتاشوم اسویلی راغلم



ته که ځې زما له خیاله؛ ښه ده لاړ شه
زه پوهېږم چه څوک بل به ورته راشی
دیوځای نه چه یولاړ شی بل رادرومی
امکان نشته چه پیدا چېر تـه خـلا شی



ستاو عدې چه کوم ساعت بدلې شوې
بیا په زړه کښې تتې لمبې بـلې شوې
ځکه مـخ رو ڼی مې د مـا ښـام وکړ
او ښکې مې شوې تلې ډیوې بلې شوې

# پښتو

ذریعه دي د تعلیم چه پښتو نه شوه
خود پښتو چه پاتې نه شوه بې پښتو شوي
تصور هم د ذهني ارتقا مه کړه
کله ته په غوښ وزر د الوتو شوي

پښور ۳۰-۱۲-۶۰



د ملت د مستقبل ځلمیه واوره
دریغه ته چه لیك او لوست د پښتو خپل کړې
ستا به شمار د ارتقا وی مدام نو لس
بې له خپلې ژبې خدایږو که یې شل کړې
مونږ زاړه یودرنه تلو نکی خبر وو دې
هسې نه چه پسته مونږ وته ښکنځل کړې

۳۰-۱۲-۶۰



هغه کوم در دی چه پښتو دپاره
مایې تل کړی ننوا تې نه دی
اوس مې نووار، د زړه دوینو راغی
چه پښتنې او ښکې مې پاتې نه دی

۵-۱-۶۱



نشته په ښکلیو کښې وفا نشته دی
زړه کیه تېر وتې جفا لټوي
ای دنیا کا مه انتظار او ښکې
لاړې جوړ ستر که دسبا لټوي
جوړ د وجود په حقیقت نه یې پوه
په کا ئنات کښې چه خلا لټوي
زړه خو له وخته را نه تاوړ ی دی
بیا څه د پا ره، زړه ه زما لټوي

## زلفې

دا به سپوږمۍ ته قهرېدې زلفې
اخو لیدې چه مسېدې زلفې
ستا د بار خو د ښکلو له په شوق
یوه له بله جنګېدې زلفې

## دسبازیری

نن په نوي ټول مې له ګلرخه سبا راغله
و خانده د زړه ګلشنه نوې هوا راغله
تښتي پریشانۍ دیار د زلفو تصور دی
غم د جدایۍ په مخه لاړه بلا راغله
نیم پرانستي سترګې، بیا زما شول پرهرونه
مسک مې شول زبیرګي ور له نوې دوا راغله

## علامه عبدالعلی مرحوم

سمندر د علم و فن عبد العلی ؤ
ؤ لوی لاس یې د پښتو څڼه وربل کښې
که وفا ور سره کړې ژوندانه وای
ډېرې پټې خزانې یې وې په تل کښې

❋ ❋ ❋

هغه لمر که د پښتون د افق پر پووت
پرې تر اوسه دی روښانه سپوږمۍ ستوری
هغه ابر چه یې جوړ له اسویلو ؤ
لا تر اوسه د ادب باران ترې اوری

❋ ❋ ❋

نن وجدان مې څه ښکالو غوندې حس کړې
جوړ یو غېږ عبد العلی در ته مکلمو کا
زما حق به په رښتیا هله ادا کړی
چه د تاسو هر ویښته پښتو کا

# بغاوت

څه کاوه که ځلمی داسې هم لیده شي
بغاوت له روایاتو یې ښه وه ده
وی منکر به له ځلانده روایاتو
چه د نسل یې مور ته بوزینه ده

# سحر نه راځي

څه عجیبه شپه ده ، سحر نه راځي
نن هغه سپوږمۍ ، چه بهر نه راځي
نن چه هسې ځان ته خبر شوی یم
ښکاری د اشنامې ، خبر نه راځي
راغي تصوریې ، په پښتون کښې نن
چاوې په وچ ښاخ کښې ثمر نه راځي
لاړو هندوستر ګوسره خو بس شوجوړ
بیر ته چه لیمو ته نظر نه راځي

لواړګی-۴-۶- ۶۴

ځای دهر چاد زړه په کور کښې لرم
توبه دې راشي ، پسې تلی نه شمه
چه خوشحالي ، هم ستمګرې شوله
نوردې اشنا ، غمونه وړی نه شمه

# دسلطان محمود غزنوی

## په مزار

که هر څودې مخ روڼی بوت شکنی وه
خوخفګان دفردوسی دربانده داغ دی
په لوګوی دیوال خود ، دخونې تور شی
که څه هم په کښې بل شوی ښه څراغ دی

غزنی – ۵ – ۱۰ – ٦٤

# دحکیم سنائی

## په مزار

چه روښانه پرې دروم دمولازه وه
لره ماو ته هم ، برخه دحکمت را
که روښانه مې دیوه له څپله سوزه
ته پر پدلی یم ، دلا رې بصیرت را

✲ ✲ ✲

غزنی ۵ – ۱۰ – ٦٤

له فراقه زړه چاودون مې مدامی دی
څپل غمونه په رېبم چه یې کرم خورم
چه پرې زه یم له جنته راوتلی
څکه زه هم په پر شوق سره غنم خورم

# علامه اقبال

کوم مارغه دمعرفت اود حکمت ؤ
چه په جال د تخیل کښېدې ګیر نه شو
ستا پیغام ،خو آفاقی او همه ګیرؤ
خو په دې کښې هم پښتون در نه هېر نه شو



پېښور ـ ۲۱ ـ ٤ ـ ٦٥

تصور دیار له ستر ګو زړه ته کوز شو
وې چه څمه په ارمان باندې مې شپه ده
سر زما په سینه ښکلی اشنا کښېښود
زړه یې رو ڼ کړ په ګرېوان باندې مې شپه ده



# پښتو ټولنه

ټولنې ډېرې په نړۍ کښې شته دی<br>
د لویو لویو، د وړو ټولنه

راشئ له لمر به یې را ونښلوو<br>
ده دوړو وړو ذرو ټولنه

بیا نو څادر د رڼا و پړ کاندی<br>
د پېغلو، شوخو، پلوشو ټولنه

نه شی تکمیل د فردیت د کالبوت<br>
وجود چه نه لری تر څو ټولنه

هم وی غومبسې هم د شاتو مچۍ<br>
شته د ترخوا و د خوږو ټولنه

سلیمانی نظام ؤ، پاتې نه شو<br>
تر اوسه شته دی د مېږو ټولنه

چه سره ټولې شی ټوک ټوکور یځې<br>
جوړه شی لاندې د شینکو ټولنه

ښه ده پښتو ټولنه، ډېره ښه ده<br>
وی دې همېش د پښتنو ټولنه

کابل ـ ٥ ـ ٩ ـ ٥٧



# د خوشحال بابا

## په یاد

ولی به زه دومره دماغ نه کوم
نن د سرحد دماغ، دماغ دی زما
چه ما پښتون ته ؤ مغل را کړی
نن هغه داغ د زړه چراغ دی زما
چه معلم ؤ د ملت د خود ګه
هغه یاغی اوس دزړه باغ دی زما
وایی که حلق مې شی د تندی نه وچ
زړه د کوثر نه هم فراغ دی زما
مات یې کړو خم د استعمار د مغل
د اتخیل د قام ایاغ دی زما
برقو نه هم په ما ګلان وروی
نوی سپرلی په باغ و راغ دی زما
د آزادۍ سترګې ځلاندې شولې
جوړ لګولې یې څراغ دی زما



# په ډیلی کښې

نن سحر د جمعې دی چې زه ناست یم
په پوړو کښې د ډیلي د جماعت
د معاش د جنګ شروع وشوه رڼا ده
وریځ تته لمر یوه نیزه اوچت

په دې ځای کښې لکه پل دی لتاړ شوی
د «خرم» او «اورنګ زیب» شان وشوکت
بازار کړي غزونی را ویښ شوی
خود خوب نښې لا ښکاري په صورت

په پوړو کښې لا ویده ډېر فقیران دی
دی بالښت یې د خرم ټول حکومت
څوک را ویښ دی له بیړه لوګی و باسی
څوک دوکان ګوري د چا یو په حسرت

شپه تیریږی که په تخت وی که په ځمکه
وخت روان دی که څوک ټیټ وی که اوچت
واقعات همه له وخته سره لاړ شی
شی راتلونکی وخت ته پاتی حکایت

د دنیا په خوب کښې، خوب وینی دا خلق
بیا دا خلق هم دی خوب په حقیقت

هر یو ذات دی مجموعه، د څو صفاتو
اوچه خپور شی، نه یې ذات شته نه صفت

هغه ذات دی، چه دی ذات په حقیقت کښې
دی نمود یې له صفا تو عبارت
«شاه جهان» ؤ که «اورنګ»، که «شاه عالم» ؤ
لا هل تېر شول، شته یې پاتې حکایت

د دنیا دو اصل ځای وشی، په سترګو
په زړه ځای موومی، و اصل دا خرت
د «خرم» او د «اکبر» عما رتو نه
په نظر کښې د کتو نکی دی عبرت

لمر خاته ته د «سرمد» قبر ته ګورم
په ډېر نیاز یې، کاندی خلق زیارت
د «محبوب الهی» په روضه بانديې
وی سرونه تل پرا ته د عقیدت
«قطب الدین» چه د خواجه «معین» نایب دی
لا یې پاتې دی، په زړونو حکومت

دا جهان یو هسی کور د آینې دی
چه میلمه یې دی فنا کور به حېرت

د حرت په کور کښې بې له نشته څه وی
څه که وی، نو وی له نشته عبارت
د پښتو مشاعرې د پاره راغلم
زن به ورشم ترې سبا به شم رخصت

بیا به وایم چه نه تللی نه راغلی
د قیام او سفر یو دی حقیقت

# وجود

ته كيفيت كه د وجود لټوې
وجود هغه دى چه نمود غواړى

ډېر وجود ونه وى ممتاز و بله
هر يو صفات او څه حدود غواړى

وى تصادم به يې په وخت د نمود
داسې حالت نه هست به بود غواړى

ډېر وجود ونه يو صفت او يو رنګ
هغه ډېر نه دى يو وجود غواړى

وجود خو يو دى ناممكن يې كثرت
خو په كثرت كښې خپل نمود غواړى

دود وى له اوره كه له هر څيز وى
څوك به ګنلې ړا او څوك به عود غواړى

او ا ه ګى - ٢٠ ر ٦ ر ٥٧



# د هند نجوم خانه

نو لسم د فرورۍ ورځ ده د نهيې
ناست يم زه د هندوستان نجوم خانه کښې

د فلک د ګلستان کيفيت و نه
دلته وار ه مجتمع دى په دا نه کښې

د هندو جوتش کمال دى چه ښکار پېږى
ارض مشغول دى د سما په افسانه کښې

د لته جوړ عمارتونه په دا شان دى
چه يادېږى به په هر ه زمانه کښې

دا جرام فلکي د انمونې دى
دى مجاز د حقيقت په ښنانه کښې

د آدم د خلافت ستاينه کېږى
د دې ښو په خاموشه ترانه کښې

څه سيلونه دقدرت دى چه يې زه کړم
د ټيلي ډراديو په بهانه کښې

زه خفه يم تل په دې چه سر ګردان يم
ګو يا جام يم د جهان په ميخانه کښې

خبر نه یم چه باده له هر ه قسمه
اچو له شی زما په پیما نه کښې

یا علوم دی چه تکمیل زما پرې کیږی
زه د دوی او دوی زما په آستا نه کښې

ډیر تحصیل وی ډیر ه ننده د علومو
علاج زیات کړی لیو نتوب په فرزانه کښې

په هستیء کښې ټول تحصیل دی لاحاصله
زړ به څه کړی چه میشته وی خزانه کښې

مطمئن هم چه د علم طلب پر پریږدی
دا هم دی یو لیو نتوب په فرزانه کښې

ژوندی زړه لره پخپله علم را شی
بله شمعه شوق پیدا کړی پروانه کښې

الا جی د مصا یبو ضرورې دی
څه که ټپل شته دی دزړه په پوندانه کښې

حمزه ! بس چه دې ملنګری فکر مند دی
دی په خیال کښې داجمیر په آستانه کښې
ډیلی - ١٩ ر ٢ ر ٦ ر ٤



# د خادم محمد اکبر

## پــه یاد

کاروان د پښتنو د ترقۍ په لاره سم دی
را وړی مې ستاقبر ته دژوند عظیم خبر دی

ډېر ډېر دی جرسونه ، خو جدا یکښې ستا غږ دی
بې شک یکښې «تورسم» شته هم «فدا» او هم «شرر» دی

منزل وته نژدې دی چه کاروان دې د مراد ؤ
که خدای کوی مقصد ته رسېدلی دا سفر دی

چه شپه دوصال راغله له ما ښامه لاو ده شوې
راو پښ شه چه اوس غشی په لینده کښې دسحر دی

خادمه د ملت له مخه و ما نو چه غایب یې
دا ځکه چه د هغو په کټو کښې ستا نظر دی

وه ستا دلیو نتوب چه میراثه شوه ورته پاتې
دا هغه میراثه ده چه شاعر په دې خبر دی

پښتو پښتو به وایو که مو څوک ولی په ټوټو
خادمه دامو هم زده کړی ستا نه یو هنر دی



هر څوک کله پیچوم وی، پیچوم وی کله هر څوک
غم غم وی په الفت کښې، داغم وی مسرت شی



ما خخه بې سوزه څه نشته او ته غواړې وفا
ځای د نکهت نه وی بلبل کښې، په ګلانو کښې وی



سر او مال مې داو کړل د ښایسته اشنا په مینه کښې
څو مره ګټه ما وکړه، هر څو که مې زیان کړی دی



سوی خومې نشته خوچه ژړا مې سبب دادی
چه زوړ سنت د عاشقانو رانه پاتې نه شی



ما په مستۍ کښې یار ته لاس کړو دادب په تندی
په بې خودۍ کښې د خودۍ مې ځان کښې رنګ و لیدو



صورت د عکس د یار مې آینه د غم لری
ګو یا میو د وصل نه ډک جام د جم لری



عشق په سینه کښې څه نقوش د ما سوانه پرېږدی
عکس به ځلا کښې د آینې څه خرابی کړی پیدا؟



عشق مې نه پر ېږدي غمو نه، بې له يا ره په سينه کښې
له عکسو نو څه نقصان وی، آ ينې ته په جو هر کښې



ستا په عشق کښې يم چه فر يا دی ، يا ر ه مجبو ر يم
دود به ترې څر ګند شي په هر ځا ی چه بل شي اور



ږېر ه مو ده پس مې اشنـا و کړ لـه پـو ښتنه
حق ده چه احساس، خو پيدا کيږ ی په پيری کښې



وتهمت ته اوږه ټيټکه کړ ه په عشق کښې
هو ږه تل سا ته له ځا نـه پـه سفر کښې



جمع مې په زړ ه دغم ر و يدا د، يو اسو يلی ؤ
ستا د تو فا نی ستر ګو ليده وو لاړ په ښکته



ګو هر واخله آ ب يې نه ځی بها نه ځی
بې څه داسې بې پر وا خو دريا نه ځی



انسا نيت بنا يی کرم ولې پرده کړې له ما
وا يه اصول مځکښې پيدا دی که انسان پيدا



زن چه ته هسی په ستر ګو کښې مسکی شو ې
دز مـر ی ز ړ ه تـه دې کښېښو ه غـر خنـې

تا ته چه رقیب ده چغلی کړې ما ته ګورې
وم ګوره ستر ګې که په تور او سپین خبر یم

✲ ✲ ✲

جوړ خبر وې چه دې ست د بو سې وکړو
دی رښتیا، خو ما نفلی رو ژه نیـو لـې

✲ ✲ ✲

غشی د شوق خه کړم، شو له ملامې د لپندې په خپر
ګز مې دغمو نو ژړ وی دسر یندې پـه خپر

✲ ✲ ✲

چه سودا دزړه په مال دمینې اخلی
وا یـه ز لفې څنځیر ولې را کـوی

✲ ✲ ✲

راز ونه، نه وو جوړ تپرې وې یو په بل وی جمع
شوه په نا وتو اسو پلو دزړه فضا خیر نه

✲ ✲ ✲

دچاشو نډ و زماخون دا ر ما ن و کړ و
چه دې ر ا غله ا ننګو ته حیا بېر ته

✲ ✲ ✲

حیرانه یم چه څرنګه یې پاك چه وینی ځان
صو فی ته یوه ورځ وشو پېغور د آینې

✲ ✲ ✲

خو بو نه زمانه دی، د تعبیر داو بو تړی
په سیند پورې وتلو ی، بې وزرو لره ګران

✲ ✲ ✲

دود، د نا کامۍ دمړه حسرت دزړه ه د شمعې
وکړه تبسم، خپلو جلو و ته کفن نه یم

شوې تمبې مې در احت په زړه کښې بېر ته
چه په د وه طر ف د مخ يـې پلو و ا خست



دحرمت په مطلب پوه نه يې زاهده
په هجرا ن کښې دشرا بو نه پرهيز دی



وخت د نن په لاس کړو پورته دسبادمخ پړونی
دسبا پرده پرون وه، نن چه وخوت هغه نن ؤ



په ځنکدن کښې مې د ټول عمر لذت بيا مو ند
ورته چاوکړو هسې غبر چه دې اجل غواړی



زه خودداريم، ته خود بين يې، وايه کوم دی اصلی حسن
آ ينه ما ته محتا جه ، تـه محتا ج يـې آ ينې تـه



په دريا ب دمحبت کښې، چه څوك سپك وی لکه خلی
چه دموج تتوړی وخوری، سر يې ورسی سا حل ته



په شپه کښې دوصال راسره مينه لکه خوب وه
سحر چه دوصال شو، ګر يزان شوه بې طر فه



څو څو ځل دمه ګير ، ستړی پتنګك شی، بيا طوا ف کا
چه ستړی په ديدن شی ، ،دمه ګير به شی په شمع



عمر ټا ل دی پکښې وړ ه ، هم تفريح شته که پو هېږې
ده جو ته د بل په واك کښې ، ځا ن دې کلك سا ته خبر شه

زما زړه خوستا د عشق اور اورکی دی
سوز ول او سول يې نښته دی رښا ده

❁ ❁ ❁

پوه د ې پر عمر په راز جوړ يوسف زی دی
چه سپين ږيری پکښې ډېر او ځوانان کم دی

❁ ❁ ❁

تا جفا انتها مې کړه نه له زا زه
ځکه ما نه هم جذ به د وفا لاړه

❁ ❁ ❁

نور ملګری څه کړمه چه وخت بې وخته نه وی
ځار له خپل قسمته چه له ما نه جدا نه شو

❁ ❁ ❁

تحفه راته د صبر او در ضاور سپده
د مینې وږی تږی ته غذا او ر سپده

❁ ❁ ❁

بې له دې اوښکې چه مې زغم ستر ګو ته پرې نښوه
د زړه صدف له ره مې ځاځکی د نيسان کوم دی ؟

❁ ❁ ❁

ن دې چه پرېشانه شوو زلفان په مخ
ښه ښکا ری پر يشان ، د پريشان په مخ

❁ ❁ ❁

عشقه له نيازه منافی دی خوشا مندې
ګوره دې پرده کښې به شيطان وی د هوس

❁ ❁ ❁

ستا ګرمی د تصور مې شوه په کار په بېلتيا نه کښې
اور که نښه د دوزخ ده ، خو په ژمی کښې جنت دی

❁ ❁ ❁

پټ په پټه څوک له فقره نه خلا صېږی
بې له دې يې څه علاج ، چه يې څرګند کا ؟

شوه پېغله زما مینه را ته هسې معلو مېږی
د زړه په سرز ماڅوا نګو و هل سر و نه

۞ ۞ ۞

پاتې به پرده نه شی ، که پټ شوې په پرده کښې
ستا بې پردګی همه پر دې دی پېدا کړې

۞ ۞ ۞

ستا دزلفو تصورمې ددنیا حرص نه ورك کړل
دا روښا نه حقیقت دی ، چه تیا ره شی مچا ن کښېنی

۞ ۞ ۞

زړو نه وی پخپلو کښې ، دا هسې در ند ا نو
ځنګه چه دا نې وی ، دا نګو رو په ږ نګو ری کښې

۞ ۞ ۞

نه دې غوښتی شم ، نه دې غوا ړمه زه
پوا رمې له دې دی ، چه ته ما غوا ړې

۞ ۞ ۞

ځنګه بو ګنېدلې شپه ، دهجر په خندا شوه
سترګومې دستور یو نه مسکا ، وتښتو له

۞ ۞ ۞

پښې دنظر مې شو ې په لاره پولې
که ستا نظر ته رسېدی ، څه به وو

۞ ۞ ۞

ته لکه پسر لی مې ، چه دزړه په وطن راغلې
ژوندمې در ته مخکښې لاس په نامودر پدو

۞ ۞ ۞

هېرمې که اشنا شو ، خولا هېر نه دی
نوم یې که په خوله نه وی ، په زړه راځی

۞ ۞ ۞

دفرهادغوندې مې وژنې په ستم له خپله لاسه
خو تر خه خبره هم په خوله شېرینه را ولی

و ېره به هغه کړی ، چه و ېره نه کا
ځوك چه وېر ېږی ، وېر ېدلی نه دی

✲ ✲ ✲

وی نوی کیف به ، په شرابو کښې نن
ساقــی دځــان سره ، موسکی راځــی

✲ ✲ ✲

په سبا کښې څه پیغام راته محسوس شو
چه ګیاه غوندې مې سر و خو ځاوه

✲ ✲ ✲

هرڅوکه اوسېلی مې څه ناخېزه درته بښکاری
یوه ځو ته ورپخ کړی ، په شیبه کښې فضا پټه

✲ ✲ ✲

پیاله دې تو یند ه کړه چې که زما
ساقی دانن نوی کرم څنګه دی ؟

✲ ✲ ✲

چه عاشقی و ته بې آ به نه شی
غمه ګــو هر د زړه مې تاغـوا ړی

✲ ✲ ✲

خدایه ورپسې دې وی سېلۍ داو سېلیو
نوم چه داشنامې دزېړ ګو سره راځی

✲ ✲ ✲

دعقل نه بهر کړه ، کړلېچو نه که هوښیار یې
فطرت ځــو لې کــړې لاړې پخپله سمــوی

پسر لیه! دخندا ږکه جولی ازي ، منمه
ورشو د پښتو نخواډي کله هم له خنداشنه کړه؟



خیر په ګستاخۍ یم ، سړیچن د بېلتانه یم
ستاپه انګو به جو ړه ټکنده غرمه کړم



لارمي ستاد کور له قصده پرېښوده څو ځله
بیا چه فکرو کړمه ، هم ستاد کور په لاریم



مینه چه پیداشي ، هلته سم کاروانه څه کا
پټې چه وی سترګي سم په لاره نه شيیون



تمنا مې ستا په هجر کښې شوه ځوانه
لکه خرا ړه چه څر به شی ، په دشتو کښې



مات مې که رباب -اوجام دمیومې نسکور کړ
غم د پښتون قام مې دماضی له ستر ګو پور کړ



اګر بګر بـه کـړی ، دستور یـو بـدل
ستر ګو تـه او ښکې پښتنې را غلې



هم دې آدم ، ترجمانی دخپل نمود کړې ده
چه یې ښوو نه رنګ په رنګ ، دخپل وجود کړې ده



محلمیه! ښاخ دمستقبل بـه ضرور
کـوی د تـا نـه د ثمـرپـو ښـتـنـه

ساقي ستا خو کرم ؤ ، پهر نداټو ز نګېد لېو
لېکن زه چه تر اوسه يم هوښيار نو ولې زانګم

❋ ❋ ❋

سره له قهره يې بار خو شول ، اوس پناه غواړي له زلفو
ځي ءچه سوري ته ور ننوتو ، راغله تکنده غرمه شوه

❋ ❋ ❋

دغه د حالا تو غليما ن به بدرګه شي ستا
روغه که تا وکړه د فطرت د تقا ضو سره

❋ ❋ ❋

مه تله و ينا مې ، د منطق په تله تو له
هغه ژبه زده کړه چه منطق يې ترجمان دی

❋ ❋ ❋

ابرو پر کوه نظر ، چه ترې ستا دا التفات يم
وېر پېر مه چه چپر ته مې ، صهبا ته نه شي مخه

❋ ❋ ❋

چه امتزاج مې د نفرت او محبت ليد لی
عشقه له تا مې هم سوا ليد لی ستر موجونه

❋ ❋ ❋

تا ته که نظر کوم ، نو هم دې ليدی نه شم
قرب را ته بعد شو لو ستا ، ته مې بانه يې

❋ ❋ ❋

پرخې شو ګيرء ، د ګل د مخ ليد وته وکړه
نمر چه شو د بره په بو ګن و ننوتېده

❋ ❋ ❋

ما ته شه رامخ ، چه آئينه دې کړم د ميني
حسن دې د حسن نه سوا ښکاره کومه

ستامتن دوعدې ، خوخه مهمل نه ؤ - اى بشكليه
تأويل كوى داشان چه خپل الفاظ تړې انكارى دى



چه ذهن مشا لو نه د فطرت و غو ر ز و ل
حالا تو بې ا ختيا ر ه تيند كو نه و خو ا ړ ه



هجرانه خير ، زما دې كه وختونه و خواړه
تا هم زماله وصله ګو زارونه و خـو ا ړ ه



حسن دې كه تت شو ، زړه را بشكون پكښې لاشته دى
راغى په سكر وتو كه خوبډلن ، تا ويې محسوس دى



هغه مسئو ل شى ، څوك چه مقبو ل شى
خـود چـه مقبو ل شـى هـغه مسئو ل شـى



كائنات ديزدان زړه دى ، اوزه زړه د كائنات يم
بيا يزدان زما په زړه كښې راته وايه چه زه څوك يم؟



زما و ينه په پټه پټه خورې خپر ا ز ه كېږ ې
ميوه كه په بښاخو ده ، له جرړ و يې ژوندون دى



تر خودې په خندا كړم ، در قيب په زړه تيا ره شوه
نسيم چه راشى پرا نېز ى ګلو نه ډيوې مړې كا



ز ه له د ې د و ا ړ و ، بل جها ن جو ړ م
نـه پـه تـيا ر ه ، نـه پـه ر ڼـا يـمه ز ه

ارمانه چه څوته یې اندېښنو سره تر غاړه
الفت به وی زما داو سپېلو سره تر غاړه



پېتاودې دوعدې دی، ژمی ستا دانتظار دی
لمر مخیه که ته راشې، که رانه شې زه پرې پایم



ځان دې کړ لو پټ زه دې ښکاره کړمه شك نشته
اوس نوو ارزما دی ځان به پټ تا به ښکاره کړم



زه په خپل غزل چه لا تر او سه قانع نه یم
مو ړچه پر ې څوك نه شی، هم هغه اصلی لذت دی



تېر به په تا نه خوږ ر مه لمر مخیه! زه
ټو ل ر نګو نه ستا د بې ر نګۍ نه د ی



دا سې نېکۍ هم شته چه بدۍ وی پکښې پټې
سیوری په رڼا کښې د تیا رو نما یند ه دی



وحشت مې لکه ستا د هو سو ستر ګو قرار نه کا
په خیا ل د تا د ز لفو ز و لنو یې خپلو مه



غږ یـم د ملت چـه ځـم یـه مخه نه ږ ا ر یږ م
نه یمه حبا ب په هو ا جو ړ په هوا و ر ا ن



چه بدوی هغه نېك شی، چه دحد په هو ر ته بد شی
د چا قا بلیت چه تر حد تېر شی ، ناقا بل شی



بنا غلی امیر حمزه شینوا ری

دریې کړه ځواني درته، هم پیر به دې هوس کړی
تو نده بړ بو کړې کړی هوا جوړه ، هوا ور انه



اوس ځنلي به په منزل دلپوني کښې پیدا نه شي
اغزو ، په رو غو خلقو کښې زما پاتې لمن ده



وچ ږ کی هـم د ا ګڼی ا شنا یې یـم
یـا ر د هغه لمـر لـکه شبنم یـمـه



لږ خو زما او ښکو ته مسکی شـه ته
ستوری په لو پړو دی ، ځلېده غواړی



حسن که غر ور لری ، وقارد مینې هم شته
ستا په تندی ګونجې ، زما ګونجې په شمله کښې



ما ته ملتفت وی که رقیب ته وی هم وی به
یو یې وی ښکاره، خو دوه مخو نه دسپو بړمې دی



کلـه کله پـه محفل کښې چـه ز ه نـه یـم
تـا پـه ستر ګـو ادا کـړ ی زما نوم دی .



# د حمزه پیژندنه

همسې خو امیر حمزه د پښتو نخوا هر شاعر او لیکوال پیژني او پیژندګلوي ته یې ضرورت نه لیدل کیږي خو بیا هم د کتابي دود په ځای کولو د پاره غواړو چه امیر حمزه په الفاظو او تورو کښې هم ښاغلو لوستونکو ته وښیو .

امیر حمزه د ملک باز میرخان شینواري زوی دی چه په ۱۹۰۷ ع کال په لوا ړګی کښې پیدا شوی او لوی شوی دی ابتدایي تعلیم یې د لواړګی په مدرسه کښې وکړ ، بیا د پېښور په اسلامیه کالج کښې داخل کړی شو خو کالج یې په نهم جماعت کښې پریښود او په رسمي تعلیم کښې یې دزړه تسل ونه موند ، بیا یې دژوندانه درازونو او تصوف درمزونو پوره مطالعه شروع کړه او په دې برخه کښې د پوخ فکر خاوند شو .

دخیبر له ځنګو غرونو او لوړې درې څخه یې دشعر الهام واخیست او د خپلې شاعرۍ په برکت یې د لواړګی او خیبر نوم دهسک لمنو ته وخیژاوه . امیر حمزه په کوزه پښتو نخوا بلکې په ټوله پښتو نخوا کښې د پښتو شاعرۍ په تیره د غزل استاذ ومنل شو . ده په ابتدا کښې اردو شعر وایه خو په ۱۹۳۳ ع کال یې د خپل مرشد سید عبدالستار په وینا له اردو شاعرۍ څخه لاس واخیست او په پښتو شاعرۍ یې لاس پورې کړ .

حمزه سر بېره په شاعرۍ په پښتو نثر کښې هم پوره لاس
لري او ډېر کتابونه یې خپاره شوي دي .

ډرامو په لیکلو کښې هم غښتلی دی. دده ډېرې زیاتې
ډرامې د پېښور له رېډیو نه خپرې شوې دي . د حمزه یوه
خوږه لیکلې قصه چه لیلی مجنون نومیږي ، د فلم په رنګ
کښې هم ښودل شوې ده دغه فلم رفیق غزنوي تیار کړی و
او دا د پښتو لومړی فلم دی چه په ۱۹۴۱ ع کال کښې تـیار
شوی او د سینما لو بیځ ته راوتلی دی .

د حمزه ادبي ژوند د پېښور د «بزم ادب» له غړیتوب
څخه شروع کیږي چه بیا وروسته د دغې ټولنې مشر شو .
په ۱۹۵۰ ع کال چه په پېښور کښې «اولسي ادبي جرګه» جوړه
شوه ، دی یې لومړنی مشر غوره کړی شو .

د حمزه په شعر ونو کښې عشق او تصوف بنیادي ټکی دی
مذهبي جذبه او پښتني مینه هم ورسره ګلـه کـه مـلـګری ده.
دی اسلام او پښتو سره غاړه غړې بولي او وایي چه ملیت او
قومیت له مذهب سره هیڅ اختلاف نه لري .

حمزه دیو فلسفي فکر خاوند دی ، اصلاحي او انتقادي
فکر یې هم تیز دی . که دی موږ په لنډو کلمو کښې وښیو
نو داسې ویلای شو :

چه د حمزه زړه د صوفیانو دی ، دماغ یې د فلسفیانو ،
عمل یې د ځوانانو او ګړه وړه یې د شیخانو دی
د حمزه لیکلی کتابونه او آثار دا دي :

۱- د زړه آواز نظم ۲-د کابل سفرنامه نظم ۳-نوی پښتون
په نثر کښې د کابل سفرنامه ده ۴-نوی چپی یو خوږ ناول دی

۵- غزونی دشعرونو مجموعه ده ۶- تسخیر کاینات
۷- یون ، دغزلونو مجموعه ۸- ژوند ۹- ژور فکرونه
۱۰- یو شعر ۱۱- د اقبال د ارمغان حجاز ترجمه
۱۲- دولسم کتاب یې دغه موجوده کتاب دی .

دوه ناچاپه کتابونه هم لري چه یو د کارل مارکس اصول
دعقل په نظر کښې نومیږی او بل ددهخپلې ژوند پیښې دی.
د تجلیات محمدیه په نامه هم په تصوف کښې یو اثر لري .

امیر حمزه د پښتونستان دادیبانو په ډله کښې څو ځله
کابل ته راغلی دی .

د ۱۳۴۵ ش کال په اسد کښې دخوشحال دیاد ونې او
لمانځنې په سیمینار کښې د پښتو ټولنې له خوا "کابل ته
رابلل شوی ؤ چه په دغه سیمینار کښې یې" دخوشحال
په تصوف یوه درنه مقاله ولوستله .

امیر حمزه دډیرو ځلمیانو استاد او په پښتو شاعری
کښې دیو نوی مکتب مؤسس دی چه ډیر ځلمیان یې روزلی
او پاللی دی .

«رشتین»



# سمون

| مخ | کرښه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ۹ | ۱۰ | ددزب | ددرب |
| ۴۴ | ۵ | ابا سینه ته | ابا سیندته |
| ۸۷ | ۵ | خبرراعی | خبرراغی |
| ۹۳ | ۱۸ | مجبوبه | محبوبه |
| ۱۰۹ | ۳ | دزرګی | دزرکی |
| ۱۱۹ | ۱۰ | ریږی | ریژیږی |
| ۱۳۵ | ۱۷ | نه شتشك | نشته شك |
| ۱۴۳ | ۱۹ | هند کو ایې | هندکویې |
| ۱۵۵ | ۲ | ا خولیدې | تاخولیدې |
| ۱۶۹ | ۱۸ | کفن نۀ یم | کفن نه یم |

ښاغلی لوستونکی به د کتاب دویلو په وخت کښې دغه پاس ناسمې کلمې سمې ولولی .

دغه کتاب دښاغلی اسدالله«لودين»
او ښاغلی محمد شیر ين «سنګری»
خوږ ياڼی په اهتمام را ووت .




# DE KHYBER WAZHMEY

## ( A Collection of Quatraians )

by

Amir Hamza Shinwarai

Published by

The Pashto Academy

1968

دولتی مطبعه